Peace Publish Center

د اوسني اټومي هند د بنسټګر ډاکټر عبدالکلام شهکار اثر!

# ویښ ملت



لیکوال: ډاکټر عبدالکلام (د هندوستان پخوانی ولسمشر)
ژباړن: لعل الدین عاطف

# د سولې خپرندويه ټولنې يادښت

(ويښ ملت)د هندوستان د اتوم د پلار او پخواني ولسمشر ډاکتر عبدالکلام شهکار اثر دی. په دې کتاب کې ډاکتر عبدالکلام د يوه ويښ او خوځنده ملت ارمانونه او تګلارې وړاندې کړې دي. هغه د يوه پرمختللي هند لپاره کلونه کلونه مبارزه وکړه او ډېر کړاونه، لوړې ژورې او خوږې ترخې يې وګاللې.

هغه د خپل پرمختګ او د اوسني هندوستان ټول ارمانونه او تجربې په دې کتاب (ويښ ملت) کې ځای کړې دي.

سوله خپرندويه ټولنه هم د همدې ارمان په اعاده کې خپلې خولې تويوي او د يوه ويښ او خوځنده ملت ارمان لري. سوله خپرندويه ټولنه د ساينسپوه عبدالکلام ارمان د خپل ولس مخې ته ږدي، ګني دا ولس ترې په الهام د خپلو ملګرو له کاروان سره ملګری شي او د خپل ليدلورې په لټون پسې يې نور د زمانې ګردونه په ځان کې ورک نه کړي.

ويښ ملت کتاب هڅاند ځوان لعل الدين عاطف له هندي ژبې پښتو کړی او سوله خپرندويه بنسټ وياړي، چې ددې درانه او په ټول پوره اثر چاپ ته اوږه ورکوي.

سوله خپرندویه بنسټ د یوې ملي داعیې لمخې خپل پښنې یېلي تګ ته هوډ کړی او ددې ارمان په ترلاسي کې خپل ولس ته یوازې د دعا لاس غځوي.
هېره دې نه وي چې دا خوړ اثر دري ته هم ژباړل شوی او په افغانستان کې یې حقوق هم له موږ سره خوندي دي او ډېر ژر به یې خپلو ځوانانو، پېغلو او زړو د خپلې خوړلنې شغلې وو ېشي.
موږ د افغاني ټولنې مذهبي، کولتوري، فکري او علمي اړتیا سنجوو او بیا خپلې موخې ټاکو او هیله مو دا ده، چې ددې ارمانونو په ترلاسي کې به رانه خپلې مشورې، هیلې او اندونه ونه سپموئ.

په درناوي
سوله خپرندویه ټولنه

۹ کب ۱۳۹۶

# لیکلړ

### پنځم څپرکی



### شپږم څپرکی



### اووم څپرکی



### اتم څپرکی



### نهم څپرکی

# ژباړن خبرې

ویښ ملتونه د هیواد د پرمختګ او ټولنې د هوساینې لپاره کار کوي. د علم او پوهې له لارې بدمرغۍ، ځانځانۍ او ناخوالو ته د پای ټکی ږدي. له هر ډول ستونزمنو حالاتو سره مبارزه کوي او ځان د بریالیتوب تر پوړیو رسوي. دا کتاب هم د ملتونو د راویښولو په موخه د ډاکټر عبدالکلام له خوا لیکل شوی دی. ډاکټر عبدالکلام د هندوستان هغه نومیالی ساینس پوه و، چې په لومړي ځل یې د هندوستان لپاره اتوم جوړ کړ. په دې کتاب کې یې د دین، ساینس، ټکنالوژۍ او سیاست په اړه ژورې خبرې کړي. د ژوند بېلابېلې تجربې او نوښتونه یې له لوستونکو سره شریکې کړي. خلک یې د ځانځانۍ او کینې پر ځای یووالي ته رابللي. نوموړي د ساینس او ټکنالوژۍ په برخه کې داسې خدمتونه کړي، چې هندوستان او نړۍ به یې تر ډېر وخت پورې هېر نه کړي. خلکو ته دا پیغام ورکوي چې له مذهبي اختلافاتو څخه لاس واخلي او د سولې او پرمختګ لپاره کار وکړي.

ما چې په لومړي ځل دا کتاب په اردو ژبه ولوست، نو د ژباړلو فکر یې راسره پیداشو. ځکه په دې کتاب کې داسې موضوعات لیکل شوي، چې د نورو ټولنو په پرتله ورته موږ ډېره اړتیا لرو. پر داسې موضوعاتو یې بحث کړی چې په لوستلو یې زمونږ د ټولنې ستونزې راکمېدلی شي. مذهبي او سمتي جګړې یې د هیواد د تباهۍ او خلکو د بدمرغۍ نښانې بللي، هغه وایي مذهبي او سمتي جګړې ټولنه د تباهۍ په لور بیایي.

که وګورو نو دا ډول کتابونه له یوې خوا د پښتو ژبې له پاره ګټور دي، او له بلې خوا د یو قوم دراویښولو په برخه کې هم رغنده رول لوبولی شي. دغه راز که د کتاب د

ارزښت په هکله دلته څومره وغړېږم بیابه هم کم وي، ښه به دا وي، چې په ارزښت یې تاسو د کتاب په منځپانګې لوستلو سره پوه شئ. په دې کتاب کې ډاکټر عبداکلام د بریالیتوب هغه لارې او رازونه په ډاګه کړي، چې تاسو یې په ژوند کې د لټون په تکل کې یاست. راځم، دېته چې ژبه د انسانانو یو تلپاتې کلتوري ارزښت دی، او د پاینښت له پاره یې هر متکلم اړ دی، چې په وړاندې یې خپل مسولیت ادا کړي، او ددې مسولیت ادا کولو تر ټولو ښه لار لیکوالي او ژباړه ده، چې ما هم د همدې مسولیت د ادا کولو له پاره تر ټولو ښه لار ژباړه وګڼله او په دې کتاب مې پیل کړه. که په نړۍ کې نورو پرمختللو، رسمي او نړېوالو ژبو ته ځیر شو، نو خپله به پوه شو، چې ددې پرمختګونو اساسي لار یوازې علمي اثار دي، په کومه ژبه کې چې علمي اثار زیات شي، نو د هغې ژبې پیروان هم ورسره جوخت زیاتوالی مومي.

په پای کې وایم، چې په علمي ډګر کې د پښتو ژبې له پاره کار کول، زموږ خدمت نه، بلکې مسولیت دی، او له دې مسولیت څخه د ژوند تر پایه خلاصون نشته. ښه به دا وي، چې اوس هم د خپلې ژبې حق ادا کړو، او هم ددې قوم په راویښولو کې خپل مسولیت ادا کړو.

نور مو سر نه خوږوم.

د یو خپلواک پرمختللي او **لوی افغانستان** په هیله!

په درنښت!

لعل‌الدین عاطف

# سریزه

قومونه له خلکو جوړېږي او د خلکو د کوښښونو لـه املـه قومونـه خپلـو موخـو تـه رسېدلی شي. د «ویښ ملت» مرکزي فکر د هندوستان د خلکو او په ځانګړې توګـه د ځوانانو تحریکوونکي فکرونه دي، چې زما په دوه پخوانیو کتابونو کې وړاندې شوي وو. د هغو کتابونو نومونه دي: «د اور وزر» او «هندوستان په ۲۰۲۰ م کال کې د تولـو د پـام وړ». دا کتاب «ویښ ملت» ما د خپلو ملګرو ارون تیواړي او وایی ایس راجن پـه ملتیـا لیکلی دی. ما دا موضوع د ځوانانو د راویښولو او تحریکولو لپاره ځکه انتخـاب کـړه، چې هندوستان تر ۲۰۲۰ م کال پورې یو پرمختللی هیواد شي. ځکه چې د ټکنالوژۍ د مدیریت لپاره مې د ځوانانو په ځواک او وړتیا باندې باور کړی دی. زما فکري ملګـري زما د ځواکمنېدو سبب ګرځېدلي. هغوی هیڅکله هم زه ناهیلی کړی نه یم. پـه ډېـرو سختو وختونو کې زه له هغوی سره ډېر خوښ وم. زه باوري یم، چې که د هندوسـتان ځوانانو ته ازادي ورکړل شي او سمه لارښوونه ورته وشي، نو هغوی له دې ځخـه هـم ډېر ستر کارونه تر سره کولای شي. کله چې ما لیکل پیل کړل، نـو پـه دې فکـر کـې شوم، چې ایا زه خو به خپل ځان ته فریب نه ورکوم؟ ما فکر وکړ، زه خوک یم، چـې د هندوستان د پرمختګ لپاره د خپل منزل او تقدیر د لټون په اړه لیکل کوم؟ د ساینس او ټکنالوژۍ سرېېره د نورو کارونو په وخت کې زه باید څه زده کـړم؟ پوښـتنه دا ده، چې زه په دې برخه کې څومره پوهېږم، چې خپلو موخو ته ورسېږم؟ ایا دا داسې برخه نه ده؛ چې په هغې کې سیاسي مشران، ټولنپوهان، مفکرین او نور وړ خلک پـه سـمه توګه کار تر سره کړي؟ زه د نورو د وړتیاو په اړه د خبرو حق لرم؟ لومړی چې کله ما له خپلو ځوانانو سره خپلې تجربې شریکولې، هیڅ نه پوهېدم، چې زه باید څه ووایم. کله چې ما خپلې تېروتنې ولیدې او د بېلابېلو ځـایونو ماشـومانو، صـوفیانو، درویشـانو،

ښوونکو، ساینسپوهانو، صنعتي مشرانو او حتا له سیاسي مشرانو نه مې چې څه اورېدلي وو، د هغو په څېړلو مې پیل وکړ. زه خو تر یوه بریده باوري یم، چې هندوستان دا وړتیا لري، چې خپل ځان پر یو پرمختللي ملت بدل کړي. په هوایي، دفاعي او کیمیاوي برخو کې زه د خپلو طرحو په اړه پوهېږم، چې زمونږ په خلکو کې د نړۍ د غوره پرمختګ د لاسته راوړلو وړتیا شته. هغوی د عقیدې او پوهې داسې حیرانوونکی جوهر لري، چې د ځمکې له نورو قومونو څخه یې بېلوي. زه په دې هم پوهېږم، چې د هغوی وړتیاوې وړیا دي ځکه، چې مونږ په محکومیت او پیروۍ کې بلد شوي یو. زه له دې زیات څه کولای شم؟ چې خپلو خلکو ته ووایم، کوم خوبونه چې هغوی ویني، د هغو تعبیر ممکن دی. دوی هر هغه شی تر لاسه کولی شي، چې د ښه ژوند سبب ګرځي. یانې روغتیا، پوهه، د خپلو موخو د لاسته راوړلو ازادي او سوله.

د دې پوښتنې د ځواب لپاره زما هڅه دا ده، چې داسې ولې کېږي؟ زه ښوونځیو، کلیو، باندو او ډېرو داسې ځایونو ته تللی یم، چې وړاندې زما د سفر برخه نه وه. دا یوه نوې تجربه وه. یوه بې حده تحریکوونکې تجربه. د بهار زراعت او اوبو لګولو سیستم، نوی جوړ شوی محلي حکومت، د جهاړکنډ ځمکنۍ شتمنۍ او د تري پوره نباتي تنوع(ډولونو) مې لیدلي دي. په آسام سیمه کې د ښکلو تراشل شویو کانو په لیدو حیران شوم، ځکه چې پر هغوی ډېره خواري شوې وه. چټکو اوبو ما ته دا احساس را کړ، چې دا ټولې اوبه ښېرته سمندر ته ور تویېږي، خو ګټه ترې نه اخیستل کېږي. نو پوه شوم، چې د یو ملت په ډول مونږ د خپلو غوره وړتیاو په کارولو کې ناکام شوي یو.

له مونږ څخه په کوم ځای کې تېروتنه کېږي؟ هغه کوم شی دی، چې سمون ته اړتیا لري؟ له مونږ سره د پنځه کلنو پروګرامونو لپاره باید یوه نقشه وي. په هغې کې هغه څه په نښنه کوو، چې زمونږ موخې ټاکي. له مونږ سره نور اړین وسایل هم موجود دي. داسې معلومېږي، چې مونږ نور خپل پرمختګ نه شو هېرولای او نه سترګې پرې پټولای شو.

زه دا کتاب د دې لپاره لیکم، څو هغو خلکو ته پرې ماته ورکړم، چې موږ ته یې د یوې منډیې سوچ کړی او خپل خام توکي پر موږ پلوري. ددې کتاب ځوان لوستونکي بايد زموږ غږ واوري او په حرکت راشي. رهبري بايد مونږ د خوښې تر بريده ورسوو. کوم ځوانان چې د پرمختګ وړتیا او قوت لري، هغوی ته بايد زمينه برابره کړو. موږ بايد هغوی ته دا روحیه ورکړو، چې نور پرمختګ هم کولای شئ. دوی بايد د سوداګريزو تړونونو، نظامونو او ټولنيزو اخلاقو په معاملو کې بې حوصلې نه شي. ويل کېږي، چې فکر پانګه ده، روزګار وسيله ده، خواري او زحمت حل لاره ده.

هر ملت خپلو موخو ته د رسېدو کوښښ کړی دی. ميندو او پلرونو د خپلو بچيانو د ښه ژوند لپاره هلې ځلې کړي دي. دا خبره ښکاره ده، چې له زيار او زحمت پرته هيڅ کار هم نه تر سره کېږي او په زيار او زحمت سره هر ډول سخت کار تر سره کېدای شي. يوازې موږ يو، چې له شته فرصتونو او پانګو څخه ګټه نه شو پورته کولای. که مونږ له زحمت څخه کار وانخلو، نو هيڅکله به بريالي نه شو. زه د هغه استبداد او ديکتاتورۍ، محدوديت، ناامنۍ او بې باوريو په اړه هم فکر کوم، چې زموږ پر ټولنه حاکم دي. زه په دې عقيده يم، چې که مونږ په خپلو موخو باور ولرو، نو هغه خوبونه چې موږ يې وينو، ضرور په حقيقت بدلېدای شي. «ويښ ملت» کتاب زموږ پټ باور راژوندی کوي او د هغه ناوړه فکرونو او ستونزو مخنيوی کوي، چې زموږ د پرمختګ خنډ ګرځي. په حقيقت کې دا هغه مرکزي فکر و، چې د ليکلو په وخت کې زما په ذهن کې و. ما چې د يو پرمختللي هندوستان کوم خوب ليدلی، تاسې هم ددې خوب په تعبير کې له ماسره ملګري شئ. ما په خپل ذهن کې همدې فکرونو ته ځای ورکړ او پر هغو مې د عمل کولو کوښښ پيل کړ. ما نورو ته لارښونه کړې ده او پر هغوی مې خپل فکر په زوره نه دی منلی. تاسې به په دې کتاب کې ولولئ، چې د يو پرمختللي ملت په توګه زحمت وباسئ کنه، د تل لپاره به ببوزله ياست. د هغو څو هيوادونو غلامان به شئ، چې ټوله نړۍ يې په کنټرول کې ده. د دې کتاب په نهه فصلونو کې

بېلابېل موضوعات راخیستل شوي دي. د سولې په اړه مې هم خبرې کړي دي. ځکه چې له سولې پرته پرمختګ ناشونی دی. د الوتکې په پېښه کې چې زه ژوندی پاتې شوی وم او د خپل ژوند لوری مې بدل کړ، په دې اړه مې هم یو څه لیکلي دي. یو فصل د هندوستان له ماشومانو سره زما اړیکو ته ځانګړی شوی دی. دوهم باب هغو لیدنو او ملاقاتونو ته ځانګړی شوی دی، چې ما له صوفیانو، درویشانو او استادانو سره تر سره کړې وې. د کرنې او طب په اړه مې بېلابېلې تجربې لیکلې دي. داسې تجربې مې هم لیکلي دي، چې د هغو په واسطه بېلابېلې ستونزې هوارېدای شي. د دې کتاب فکر مې له خپل ولس نه ترلاسه کړی دی، له هغه ولس نه، چې ماته یې د ژوند لوری را ښودلی دی. ما دا کتاب د هندوستانیانو د پټو وړتیاو د رابرسېره کېدو لپاره لیکلی دی. له مونږ سره هغه ټول وسایل شته، چې مونږ ورته اړتیا لرو. دا وسایل که خلک وي، وړتیا وي او که طبیعي زېرمې. رښتیا خو دا ده چې هندوستان پرېمانه نعمتونه لري، چې د نورو هیوادونو لپاره تش خوب دی. د وسایلو کموالی زمونږ د ستونزو سبب نه دی. زمونږ ستونزې د هغو په اړه بې پروایي ده. مونږ خپل وسایل ډېر پاشلي دي او له کمښت سره مو مخامخ کړي دي. که چېرته مونږ د هندوستان په اړه ښه نیت لرلی وای او وسایل او پیسې مو په سمه توګه کارولي وای، د دې څو چنده ګټه به مو تر لاسه کړې وه. هرې برخې ته په ژور نظر کنټل ښه والی رامنځ ته کوي. مونږ باید خپلې لارې بدلې کړو. مونږ باید خپل پلانونه په داسې ډول چمتو کړو، چې له دندو څخه مو نورو ته ګټه ورسیږي. د انفرادي برخو پر ځای باید ټولنیزې برخې غوره کړو او له ټولو خلکو سره خپلې اړیکې وپالو. دلته داسې لارې موجودې دي، چې هیڅ خیال یې نه شي کېدای. هره لاره یو څه ستونزې لري. مونږ باید له خپل ځواک او انرژۍ څخه په سمه توګه ګټه واخلو. زما په فکر د امریکا، جاپان سینګاپور او یا نورو هیوادونو لاربښوونې زمونږ په ګټه نه تمامېږي. د نورو دروازې ټکول هیڅ ګټه نه لري. د خپلو خیالونو د رښتیا کولو لپاره مونږ حل لارې ته اړتیا لرو. مونږ باید د خارج(د باندې) پر

ځای په داخل(دننه) کې خپل څوابونه ولټوو. که تاسې دغه نهه فصلونه ولولئ، نو پوه به شئ، چې ما د خپلو خلکو لپاره څه کړي دي؟ دا نهه فصلونه به تاسې ته دروښيي، چې دا پوهه ما له خپل ولس نه ترلاسه کړې وه.

او له دې پوهې څخه به زما ښه چلند احساس کړئ، ما خپله پوهه خپل ولس ته ځانګړې کړې وه. د پرمختللي ملت حقيقت به ستاسې د ژوند يوه برخه جوړه شي. کېدای شي چې شل کاله وروسته زه له تاسې سره نه يم. زه په دې باور يم، چې زه به تاسې سره په هره بريا کې ملګری وم او د هر بريالیتوب برخه به وم. بيا به وايئ، چې زه په دې باور کې په حقه وم. د دې په ليکلو کې له ما سره ډېرو ملګرو مرسته کړې ده. زه له دوی ټولو څخه منته کوم. زه له وايي ايس راجن او ډاکټر ايم ايس وجې رګون نه ځانګړې منته کوم، چې زما د فکرونو د راټولو لپاره يې بېلابېل مواد چمتو کړل. ډاکټر ای سواتهانوپلايي له ما سره ډېر وخت کار کړی دی او د هغه کار د ستايلو دی. زه ورته ډېر درناوی لرم. زه بختور يم، چې هغه زما ملګری دی. زه د ايچ شريډن مننه وی يم، چې زما املا يې په ډېر مهارت سره په خپل ليپټاپ کمپيوټر کې کمپوز کړه. په اور وزر«اګ کې پر» کتاب باندې زما د ملګري ارون کې تيواړي د ليکنې درناوی کوم. په پينګوين بکس کې له کرشن سره کار کول ډېر خوندور و. زما له فکر نه نيولې ددې کتاب تر بشپړېدو پورې راسره هغوی مرسته وکړه.

ای - پي - جې - عبدالکلام

چنای

اپرېل ۲۰۰۲م

# لومړۍ څپرکی

## خوب او پیغام

- خوب په فکرونو بدلېږي او د فکرونو پایله عمل وي.
- مونږ چې هر کار تر سره کوو او هر ډول نظر وړاندې کوو، بایـد د انســان د ښه والي لپاره یې تر سره کړو.
- ما تل له طبیعت سره نږدې اړیکې ساتلې دي او هغه مې له کوم وضــاحت پرته یو ملګری ګڼلی دی. لکه د آم ونه چې وایي: ما خلک په ډېــرو ولـي، زما ښاخونه خلک ماتوي، خو بیا هم ستړي مسافر زما ســیوري تــه دمــه کوي او ورو ته مېوه ورکوم.
- نن سبا یو ډېر حوصله ختموونکي شــیان، چــې د خلکــو د ژونــد معیــار ګرځېدلی، هغه بې ګټې بحثونه، ډېره غوسه او کینه، بې رحمي، خفګان او تشویش دي.
- بدلون اړین دی. بدلون نوی فکر زېږوي او نوی فکر زموږ د کردار او کړنــو لارښوونه کوي.

په ځمکه او اسمان کې د خوب له اړیکې څخه لوړ ځواک نشــته. خــوب دا ځــواک لري، چې د شیانو په زړونو کې پټ شي. همدار راز خوب داسې ځــواک دی، چــې روح او ماده سره یو ځای کوي.

د ۲۰۰۱م کال د سپتمبر میاشت وه. زه له رانچي څخه بوکارو ته روان وم، له کوزېدو نه څو شېبې وړاندې هغه الوتکه، چې زما د تګ لپاره راغلې وه، رانسکوره شــوه. د

هغې د ماشین له خرابېدو وروسته له ځمکې سره ټکر شوه او چاودنه یې وکړه. مونږ ټول چې په هغې کې ناست وو، د خدای په فضل سره وژغورل شوو. د خدای شکر مو ادا کړ او د دې پېښې له امله ناهیلي نه شوو. د خپل ټاکلي پروګرام لپاره بوکارو ته لاړو. د شپې راته یو ډاکټر د سکون او ارامتیا درمل راکړل. دې درملو زما د عادت خلاف خو ساعته مخکې خوب راوست. سهار شپږ بجې هم را بیدار نه شوم، بیا له اته بجو وروسته راپاڅېدم.

هغه یو ناارامه خوب و. خو شېبې په دې فکر کې وم، انسان چې تر نورو مخلوقاتو غوره هم دی، ولې په تشدد او ظلم کې ډوب دی؟ ما په خپل ذهن کې له ځینو کسانو سره خبرې وکړې او ومې لیدل، چې په ټولیز ډول د انسان ذهن غوره ځانګړنې لري. د دې خبرو له لارې ما یو ځواب پیدا کړ. دا خوب یوه ښکاره تجربه وه او د یوې ښې خاطرې په ډول همدا خوب بیانوم: ما خپل ځان په یوه دښته کې ولید، چې هره خوا یې له شګو ډکه وه. سپوږمۍ راختلې وه او شګلینه دښته یې روښانه کړې وه. ځینې کسان چې په هغو کې مهاتماګاندي، البرټ این سټاین، اشوک باچا، ابراهام لنکن او دوهم خلیفه حضرت عمر رض په دایره کې ولاړ وو. باد یې جامې خوځولې. زه چې له شهنشاه اشوک سره ودرېدم، نو ځان راته ټیټ ښکاره شو. اشوک دوه ډوله ژوند تېر کړی و. یو ډول ژوند یې د بې رحمه فاتح په څېر او بل ژوند یې د یو مهربان مشر په ډول تېر کړی و. زه چې له کوم سړي سره ولاړ وم، هغه له فتحې(بریا) څخه همدا اوس راغلی و. دا بری په ډېره لوړه بیه تر لاسه شوی و. د کالنګا په جګړه کې لږ تر لږه درې سوه زره خلک وژل شوي وو او همدومره نور ټپیان شوي وو. ټولو پلټنې وهلې وې او اشوک ته یې په معصوم انداز کتل. خپله وسله او تاج یې پر ځمکه ایښي وو. د هغه څېره کې د خپلو شاوخوا مړو انځور ښکارېده. هغه اسمان ته وکتل. هغه سپینه او روښانه سپوږمۍ ولیده. د دې تر څنګ یې پر ځمکه د وینو رودونه ولیدل. ښایست او وحشت دواړه سره غېږ په

غبږ ښکارېدل. ښايست په اسمان کې او وحشت په ځمکه باندې پروت و. په داسې حالاتو کې، چې په خپله طبيعت د فساد او ظلم پر وړاندې خبرې کوي، نــو داسې ښکاري، چې يو مثبت الهام به راپيدا شي. د دې نظريې پر اساس اشوک د بهګوان( دهندوانو خدای) په مينې باندې باوري شو. زه يې په څنګ کې حيران ولاړ وم او له ځان سره مې ويل، چې د کالنګا جګړه ولې تر سره شوه؟ مهاتماګانــدي او ابراهــام لنکن ولې ووژل شول؟ يا د هغو په څېر په سلګونو نور ولې ووژل شول؟ ايا له لــوی خدای ج څخه په خپل پيدايښت کې تېروتنه شوې ده؟ په دې چوپتيا کې مهاتمــا وويل: ملګرو! مونږ چې کوم خدايي پېغام اورو، دا د تخليق(پيدايښت) پېغــام دی. څرنګه چې مونږ ټول سره ګډ اوسيږو، نو دا مونږ انسانانو ته دا پېغام راکــوي، چــې څنګه ببلابېل قومونه، مذهبونه او ژبې يوځای په سوله او خوښۍ کې برياليتوب ته رسېدلی شي. مهاتما مونږ ټول په داسې ځانګړي شي باندې نازولي وو، چــې هغــه مونږ د خپلو کوښښونو له لارې نورو انسانانو ته انتقال کړی و. ايا دا يو بد کار و؟ ايا هلته يوه الهي نظريه يا پېغام موجود و؟ الهي ښکلا بايد په انساني روح کــې ځــای شي او مونږ بايد ټول خوښ اوسو، ايا دا امکان لري؟

اشوک وويل: ملګرو! زه په يوه خبره پوه شوی يم، هغــه دا چــې د خلکــو پــه پــه ځورولو کې هيڅ ډول برياليتوب نشته. برياليتوب سوله ييزه پاچاهي ده.

حضرت عمر رض وفرمايل: يروشلم ته له ننوتلو وروسته زه په دې وپوهېدم، چــې ټول انسانان سره برابر دي. نور خلک دې ته رابلل، چې ستا پيروي وکړي، بې معنا خبره ده. تاسې به هغه څه تر لاسه کړئ، چې ستاسې په تقدير کې يې درته ليکلي وي. يوازې الله ج په بشپړه توګه حاکم دی.

حضرت عمر رض چې کومه شتمني له خلافت څخه تر لاسه کوله، د هغې يې هــيڅ پروا نه ساتله. د هغه لپاره حکومت يوه سپېڅلې دنده وه او هغه له دې دندې څخه هيڅ ډول ناوړه ګټه نه پورته کوله.

اوس د این ستاین وار و. هغه وویل: زه د خپل ملګري ورنرآیزن هاور خبرې تکراروم. تاسې پوهېږئ، چې په لوېدیځ کې مونږ یوه ښکلې کېښتې جوړه کړې ده. په دې کې د ارام او دمې لپاره هر ډول اسانتیاوې موجودې دي. د یو شي کمي هم پکې نشته؛ خو یوازې قطب نما پکې نشته. سپاره کسان په دې نه پوهېږي، چې دوی چرته ځي؟ تېګور او ګاندي قطب نما تر لاسه کړې ده. دا قطب نما په بېړۍ کې ولې نه نصبېږي؟ ایا که دا په بېړۍ کې نصب شوې وای، نو ددوی مقصد به پوره شوی وای؟

د امریکا ستر مشر، چې هغه د غلامۍ پر ضد جګړه تر سره کړې وه او د ځینو روایتونو پر اساس د هغه ژوند د مهاتماګاندي په څېر و. په دې اړه یې وویل: ځینې کورنۍ په بېلابېلو برخو کې خوښي تر لاسه کوي. د خدای ج رحمت د انسانانو په ژوند کې برکت اچوي. خوښي او برکت په مذهبي ژوند کې دوه مهمې برخې دي. کېدای شي، چې د خلکو تر منځ دومره ډېر جنجال ځکه وي، چې مونږ د خپلې خوښۍ او اقتدار د لاسته راوړلو لپاره خپله اخلاقي دنده پرېښې ده. مونږ باید له ځپل ځان څخه پوښتنه وکړو. چې انساني شعور کوم کار تر سره کولی شي؟ ایا دا په سیاسي او ساینسي برخو کې کومه ونډه لري؟ ایا د ژوند په کاروبار کې روحانیت د منلو وړ دی؟ مهاتما د سنت اشتو په اړه ویلي وو. ای زما زویه! ته هغه شعور یې، چې له هغې څخه ټول کاینات راخوتېږي. د ځینو شیانو د منلو او نه منلو پوښتنه څه ډول راپورته کېږي؟ سوله او خوښي د ژوند لاره وګرځوه او له جنګ او جګړې څخه لاس واخله. د ځمکې او په ځمکه کې د ټولنیز ژوند پیغام زمونږ لپاره همدا دی، چې مونږ باید د انسانانو د ښه والي لپاره کار وکړو.

بل سهار د چای څښلو په وخت کې ډېر کېناستم او د هغه خوب په اړه مې فکر کاوه. که چېرې الوتکه یو څه لوړه وای، نو څه به شوي وو؟ زما له دې پېښې څخه یو څو ساعته مخکې په یوه الوتکه کې یو تکړه مشر او د خبریالانو یو ټیم ناست و،

چې ټول له منځه تللي وو. زه بختور وم، چې ژوندی پاتې شوم. اوس دا يوه تجربه وه او زما لپاره يې يو پيغام درلود. زه بايد څه وکړم؟

ما له کړکۍ څخه دباندې وکتل. لمر راختلی و او نرمه هوا چلېده. ما تل له طبيعت سره نږدې اړيکه درلوده او هغه به مې خپل ملګری ګاڼه. له هغه نه به مې هيڅ هم پټ نه ساتل. د آم د ونې په څېر، چې خلک يې په تيږو ولي، ښاخونه يې ماتوي، مګر بيا هم هغه د ستړو مسافرو لپاره دمه ځای برابروي او مېوه ورڅخه خوري. ما چې هر چېرته کار کړی دی، که هغه په رميشورم، تهمبا او چندي پور کې سمندر و. په پوکران کې صحرا وه او که په حيدراباد کې لوی لوی غرونه وو، طبيعت د تل لپاره د خپل شتون احساس راکړی دی. هغه مونږ ته هغه الهي ځواک رايادوي، چې په ټولو موجوداتو کې شتون لري.

ما د خپل خوب په اړه داسې فکر کاوه، چې د نړۍ تاريخ دا څرګندوي، چې غوره خلک د انسان د ښه والي لپاره کوښښ کوي، خو انسانان د بربادۍ او تباهۍ ورتيا هم لري. له مونږ سره له يوې خوا ګاندي او لوی استاد سنت شته. هغوی د ښه ژوند لپاره اخلاقي اصول وړاندې کړي دي. له بلې خوا په دوهمه نړيواله جګړه کې په زرګونو خلک وژل شوي او اتومي بمونه کارول شوي دي. دې بمونو لوی لوی ښارونه له منځه وړي دي. د بوسنيا په جګړه کې په زرګونو خلک وژل شوي دي. د فلسطين او اسرايل جګړه هره ورځ له خلکو څخه ژوند اخلي. په ۲۰۰۱م د ډسمبر په يوولسمه نيويارک کې له يو سوداګريز مرکز سره الوتکه ټکر شوه، چې د ډېرو خلکو ژوند يې واخيست. په بهوپال کې د ګيس کمپنۍ د بې پروايۍ له امله ۳۰۰۰۰ خلک له منځه لاړل. په کشمير کې په زرګونو خلکو خپل ژوند له لاسه ورکړ. دا حالت به تر کومه دوام لري؟ ايا د خپل ځان تباه کول به زمونږ په نصيب کې وي؟ نه! مونږ بايد يوه سمه حل لاره ولټوو.

زه هغه نظم وايم، چې څو کاله وړاندې مې ليکلی و.

د ژوند ونه

ته انسان زما غوره مخلوق یې
ته به د خلکو په زړونو کې ژوندی وې
او تر هغه وخته به یادېږې
چې د نورو په غم او ښادۍ کې ځان شریک بولې
زما برکت به په تاسې کې پیدا شي
مینه یوه سلسله ده
مینه د انسانیت موخه ده
ته د ژوند ونې ته هره ورځ ګورې
ته پوه شه او پوه شه
زما په مخلوقاتو کې ته غوره یې

ما چې په خوب کې کوم پنځه انسانان لیدلي وو، هغوی په بېلابېلو وختونو کې ژوندي وو. په اوس وخت کې د داسې انسانانو یو څو مثالونه موجود دي، چې دا ډول صفتونه ولري. یعنې هغه صفتونه لري، چې د ذهن په جوړولو کې ونډه لري. یو ځل یو هلک له ما څخه وپوښتل، چې ما د هندوستان په اړه زده کړې کړې دي، نو ته راته ویلی شې، چې زما د خوښې کرکټر کوم یو دی؟ په ناسته کې هر ډول ښه او بد صفتونه په ګوته شول. ما ماشوم ته وویل، چې زه په ځانګړې ډول د ودورا شخصیت خوښوم. هغه د حکومت په ناسمو کارونو باندې نیوکه کوله. کله چې به کوم زورواکي د ظلم او جبر سر راپورته کاوه، نو هغه به یې مخالفت کاوه. نن سبا زمونږ په مشرانو کې یو ښه مشر پیدا کول ستونزمن دي. زمونږ لپاره د داسې لیدلوري خیال کول هم ستونزمن دي او دې موخې ته رسېدل هم دومره اسانه نه دي. د وګړو د ژوند معیار، په ټیټه سطحه بحثونه، کینه، ځان غوښتنه، بې رحمي، خپګان او ځانځاني هغه لاملونه دي، چې زمونږ د ټولنې د پرمختګ مخه یې نیولې

ده. ما اوس په ځان کې یوه نوې ورتیا پیدا کړه. د هندوستان د جوړولو فکر مې په ماشومانو کې وروزه. زما ساینسي عملي ژوند، زما ټیمونه، زما ویاړنې ټول پاتې شول. د دې پر ځای ما د تلپاتې ذهنیت هیله درلوده، چې هغه هیله هندوستان و. ما له خپل ځان څخه له دې هم لویه هیله درلوده، چې ما ته له هغو ماشومانو سره د اړیکو له امله راپیدا شوې وه. ویل شوي دي، چې یو انسان په خپل ژوند کې له بېلابېلو پړاوونو څخه تېرېږي. ډاکټر وایندډ بلیو ډایر په خپل کتاب(خپل تقدیر ښه کړئ) کې د دې پړاوونو په اړه جالب معلومات ورکړي دي، چې هغه پړاوونه دا دي: ورزشي پړاو، جګړه ییز پړاو، تدبیري پړاو او روحاني پړاو. زما نظر دا دی، چې قومونه هم له داسې پړاوونو څخه تېرېږي او دا ورته والی دومره پراخ دی، چې وروستیو دوه پړاوونو ته مې د مشر ورور او ځان پېژندنې نومونه ورکړي دي. دا پړاوونه ضرور نه دي، چې پرله پسې راشي. هغه په یو ځای هم راتلی شي، چې یوه خوا یې ځواکمنه ده. په لومړني ورزشي پړاو کې هغه قوم چې د ازادۍ له هلوځلو څخه تازه راوتی وي یا له یوه بل پړاو څخه تېر شوی وي، د عمل او بریالیتوب پاروونکې مبارزه پیلوي. دا په جاپان، سنګاپور او ملیشیا کې تېر شوي دي.

کله چې یو قوم له دې پړاو څخه تېرېږي، نو هغه په عمومي توګه په جګړه ییز پړاو کې داخلېږي. په خپل بریالیتوب باندې ویاړي او په نورو باندې د ځان لوړ ښودلو هڅه کوي. په دې پړاو کې خلک له نورو سره د موخو او بریالیتوبونو پر سر مقابله کوي. دا پړاو د خلکو تر منځ د خفګان لامل کېږي.

په راتلونکي پړاو(مشر ورور) کې غرور او تکبر یو څه کمېږي او فکر لوړېږي، چې دا د نورو قومونو لپاره ډېر ارزښت لري. په «مشر ورور» پړاو کې نوموړی قوم د یو څه تر لاسه کولو په هڅه کې وي. د خپل زور په ښودلو کې اخته نه وي. له نورو سره د مرستې فکر ورسره پیدا کېږي. په اسیا کې هم پخوانۍ روسیې همدا د مشر ورور پړاو په ځان عملي کړی و یانې د مشر ورور کردار یې ادا کولو. فرد ته هم د

قوم په خبر د «مشر ورور» پړاو د جګړه ییز پړاو په پرتله ګټور وي، خو یو څه ستونزمن کار وي. له «مشر ورور» پړاو څخه یو بل لوړ پړاو هم شته. په دې پړاو کې قومونه تر ټولو رښتونې وړتیا پېژني. له دې پوهې څخه دا څرګندېږي، چې ځمکه د یو قوم نه ده، بلکې د ټولو قومونو میراث دی او د دې قوم خلک د نورو انسانانو ځانګړتیاوې پېژني. دې ته د ځان پېژندنې پړاو وایي او کېدای شي، چې هندوستان د دې وړتیا ولري.

ما په خپل ۴۳ کلن عملي ژوند کې په بېلابېلو ادارو کې دندې تر سره کړې دي. بدلون اړین دی. بدلون نوی فکر رامنځ ته کوي. نوی فکر په کارونو کې نوښتونه رامنځ ته کوي. د ۲۰۰۱م د اګست په میاشت کې ما د یوه بل بدلون پرېکړه وکړه. ما وزیراعظم اټل بېهاري واجپایي ته خپله خبره بیان کړه. هغه ما ته وویل، چې په دې اړه بیا فکر وکړه. هغه ته ما پخوا هم د خپلو زده کړو د بشپړولو په اړه ویلي وو او هغه ما ته د کار کولو مشوره راکړه. د راکټ ویشتونکي په توګه مې هم کار تر سره کړی دی. څو ځلې مې راکټ په ټاکلي لوړ باندې توغاوه او راکټ به ټاکلی هدف ویشته. په ۱۹۶۳- ۱۹۸۲م کلونو کې مې د هندوستان په هوایي څېړنېز مرکز« ایې، ایس، آر، او» کې دنده تر سره کړې ده. په ۱۹۸۰م کال کې هندوستان فضا ته د مصنوعي سیارې موټر په بریالیتوب سره ولېږه. هغه د روهنـي مدار ته ورسېد او د هندوستان د فضایي کلب ځانګړې برخه شوه. ما د «ایس ایل وي ۳» په پروژه کې د لارښود په توګه کار وکړ. دې هڅو او کوښښونو زمونږ قوم ته بېلابېل بریالیتوبونه ورپه برخه کړل. فضا ته یې د مصنوعي سیارو رسولو سیستم جوړ کړ. له دې نه هم لویه خبره دا ده، چې د مرکز بیلابېلې ادارې، لکه آر ډي لابراتوارونه، صنعت او اکاډمیو ته یې بېلابېل مواد برابر کړل او د هغوی د ادارې او کنټرول لپاره یې ښه نظام رامنځ ته کړ. همدارنګه دې پروګرام د ټکنالوژۍ او مدیریت لارښوونې هم په ګوتو کړې. اوس هغه په بېلابېلو فضایي او دفاعي پروګرامونو کې کار کوي. دا

زما لومړی پړاو و، چې له درې لويو مشرانو ډاکټر وکرم سربهي، پروفيسر ستيش دهون او ډاکټربرهم پرکاش سره مې وليدل او ډېر څه مې ترې زده کړل. دا زما لپاره د زده کړې او پوهې لاسته راوړلو پړاو و.

بيا دوهم ځل مو په ۱۹۸۲م کال کې په دفاعي څېړنيز مرکز «ډي آر ډي او» کې سره وليدل. يو ځل بيا د ميزايل ټکنالوژي کنټرول رژيم « ايم ټي سي آر» او «اين پي ټي» يې نه منل او دا يو ټولنيز کار و. ما د «ډي آر ډي او» له ټيمونو سره په دې لابراتوارونو کې د کار کولو چانس تر لاسه کړ. دې ټيمونو به د ستراتيژيکو ميزايلونو د ډيزاين، لوړوالي، چمتووالي او کارولو لارښوونه کوله. دا ډول ستراتيژيک ميزايلونه هندوستان ته هيڅ هيواد نه ورکول. په دې وخت کې ما درې نوي لابراتوارونه، اسانتياوې او لوړ استعدادونه وموندل. د ميزايل ټکنالوژۍ په برخه کې په حيدراباد کې د عمارات څېړنيز مرکز «ار سي ايي» په نوم لابراتوار او د نورو ميزايلونو ازمېښت وشو، چې يو يې د بنګال خليج په ساحل کې د چندي ګر په وچه کې او بل په يوې جزيرې باندې ولوېد. لنډه دا، هغه ټکنالوژي چې له لابراتوارونو او علمي ادارو څخه تر لاسه شوه، د قوم په جوړولو او ځواکمنولو کې يې ډېره ونډه درلوده او زه يې د «ايم ټي سي آر» په اداره باندې د ملګرو ملتونو د بنديزونو په لرې کولو بريالی کړم. زما ټيم د لويو وچو ويشتونکي مزايل(آيې سي بي ايم) سربېره هر ډول ميزايلونه ډيزاين او چمتو کولی شي. په دې پړاو کې ما ډېر برياليتوبونه تر لاسه کړل او له ځينو ناکاميو سره هم مخامخ شوم. ما له ناکاميو څخه زده کړه وکړه او له هغو سره مې مبارزه وکړه. دا زما دوهم پړاو و. دې پړاو زه دې ته وهڅولم، چې بايد له خپلو ناکميو څخه درس واخلم.

دريم پړاو دا و، چې د دفاعي ځواکونو او کيماوي موادو په جوړولو او کارولو کې مې لويه ونډه واخيسته او هندوستان مې يو اټمي ځواک کړ، کوم چې هندوستان ورته سخته اړتيا لرله. ماشومان له ما څخه پوښتنه کوي: تا په تېرو ځلو ېښتو کلونو

کې څه خوښي تر لاسه کړه؟ زه ورته وایم، کله چې د زړه ناروغ تـه د شـریانونو د څواکمنېدو آله «کی آر»(K R) استعمالیږي او د یو ناروغ ماشوم د فلورري ایکشـن او «تهوسس ایف آر او» د نارغیو درملنه د قطـر پیمـا پـه وسـیله کېږي، نـو زه خوشالېږم. دا دواړه آلې د میزایل ټکنالوژۍ له برکته دي.

زه په دې وخت کې د ساینس او ټکنالوژۍ تر نامه لانـدې د مالومـاتي ټکنـالوژۍ، فورکاسټنګ او اسیسمېنټ کونسل ټي ایې ایف ای سي کې شاوخوا اته کاله مشـر وم. په دې وخت د بېلابېلو برخو ۵۰۰۰ ساینسپوهانو او تخنیکپوهانو په وسیله د تر لاسه شویو وسایلبو په مرسته د ۲۰۲۰ م کال ټکنالوژي رامـنځ تـه شـوه. لـه دې وروسته ټکنالوژي پراخه شوه او د هندوستان میلینیم ( آیې ایم ایم ۲۰۲۰م) رامنځ ته شو. کله چې زه په ۱۹۹۹م کال کې د هندوستان د ساینسپوهانو د مشر په توګه وګمارل شوم، نو زما کار دا و، چې «آیې ایم ایم ۲۰۲۰م» په اړه باید معلومات راټـول او عملي پلان چمتو کړم. په حقیقت کې دا د هندوستان د پرمختګ لپاره یوه ښـه نقشه وه. د ملت بله موخه دا وه، چې دا وخت د پـوهې او کرنـې پـه اړه ځـانګړې تجربې رواني وې او په کلیو او بانډو کې هم د پرمختګ کارونه تر سره کېدل. د دې موضوع په اړه کابینې حکومت ته وړاندیز وکړ او د منظور بدو غوښتنه یې وشوه. د دریمې مرحلې په وخت کې له اداري ګډون سره سره د ټکنالوژیکي استحکام تـر لاسه کول هم وضع وشول. د ۲۰۰۱م کال د الوتکې پېښې زه په دې پوهولی وم، چې د دریمې مرحلې د پر ښنـدو وخـت رارسـېدلی دی. دا فکـر د مهاتمـا ګانـدي د پیدایښت په ورځ(۲ اکتوبر) نور هم پوخ شو، چې کله زه په کیراله کې د ماتا امرت انند مایي دربار ته لاړم. هغوی د سوداګرو او مشرانو د یو نوي نسـل د رامـنځ تـه کولو لپاره له پوهې سره سره په روحانیت باندې هم ټینګار کـاوه. د ۲۰۰۱م کـال د اکتوبر په ۱۲ یانې د لمر د ۷۰ مدارونو په خواوشا زموږ د مصنوعي سپوږمکۍ د سفر تر بشپړ بدو درې ورځې مخکې ما وزیر اعظم ته د خپل تقاعد اخیستو لپاره رسمي

خط ولیکه او د یوې میاشتې په موده کې مې د خپل فراغت غوښتنه وکړه. په دې وخت کې هغه غلی شو، خو تقاعد مې ترلاسه کړ. زه دا مهال په ښوونځیو گرځېدم. د شمال ختیځ، آسام، تري پوره، جهارکنډ او تامل ناډو په سیمو کې مو له ۴۰ زره زده کوونکو سره لیدنې وکړې. ما دا احساس وکړ، چې د دې عمر لرونکو هلکانو سره مې خبرې ښې وې. ما داسې انگیرله چې زه د هغوی په خیالونو کې گډون کوم. تر ټولو مهمه خبره دا ده، چې له هغوی سره مې د خپل چلند له لارې دا احساس وکړ، چې زه د هغوی په ذهنونو کې د ساینس مینه را ژوندۍ کولی شم او د هغې په واسطه د هندوستان د پرمختگ شعور پیدا کولی شم.

ایا دا به زما ځلورم پړاو وي؟ ایا زه به بریالی شم؟ زه نه پوهېږم. په کومو شیانو چې زه پوهېږم هغه دا دي:

په ځمکه او اسمان کې له خوب سره تر اړیکو بل لوی ځواک نشته. خوب دومره ځواک لري، چې د شیانو په زړونو کې پټ دی او داسې ځواکمن قوت دی، چې روح او ماده له یو بل سره یو ځای کوي. له تېرو څو کلونو راهیسې مې په پام کې وه، چې د ښېړنې او تدریس مسولیت واخلم. د دې موخې لپاره مې هم د ښوونځي له ماشومانو سره ولیدل. د خپلې هیلې د پوره کولو لپاره خپلې علمي مور(اینا پوهنتون) ته لاړم. له نوښتگرو او غورځنگي ځوانانو سره چې یو ځای شوم، نو دا احساس یې راکړ، چې د دې هیواد مشران باید د قوم او هیواد د پرمختگ لپاره هر ډول کوښښ او هلې ځلې وکړي. مونږ د تېر مهال د ناکامیو بدیل څه ډول تر لاسه کولی شو؟

## لنډیز

له پوهې سره روحاني طبیعت هم اړین دی. ځان پېژندل هیله ښښـونکی نظـر دی. مونږ ټول باید خپل لوړ ذات(ځان یا self) وپېژنـو. تېـرو سـختو او خواشـینوونکو حالاتو زمونږه ښې او ځلانده راتلونکې ته لاره هواره کړه. مونږ بایـد خپـل ویـده ځواک را بیدار کړو او له خپل تېر وخت نه درس واخلو. ځوانانو ته باید د خپل ژوند د ښه والي لپاره لارښوونه وشي. د رغوونکو هلو ځلو لپاره باید ملا وتړو او ذهنونه داسې روښانه کړو، چې د دې ملت لپاره د سولې، خوښې، برکت او نېکبختۍ سبب شي.

# دویم څپرکی

## مونږ باید د نورو لپاره یوه ښه بېلګه واوسو!

که انسان هر څه وغواړي تر سره کولی یې شي او که ویې نه غواړي، نه یې شي تر سره کولی.

که زه د کوم کار په نه کولو باور ولرم، نو دا باور د دې سبب کېږي، چې زه د دې کار د تر سره کولو وړتیا نه لرم. خو که زه باور ولرم، چې زه دا کار تر سره کولی شم، نو زه د دې کار د تر سره کولو وړتیا لرم.

مهاتما ګاندي

- د یوه انسان ارزښت د هغه له کارونو څخه معلومېږي.
- طبیعت هیڅ نیمګړي کارونه نه تر سره کوي.
- په نړۍ کې هر څه د وړتیاو لمخې رامنځته کېږي. مونږ هم د کایناتو یوه برخه یوو.
- د مادي شیانو په غوښتلو باید ونه شرمېږو.
- زمونږ په ژوند کې د غوره انسانانو ډېرې بېلګې شته او هر څوک کوښښ کوي، چې دا غوره صفتونه په ځان کې هم پیدا کړي.
- قران کریم زما د لارې ملګری دی.
- غوره عملي بېلګې په فرد، ټولنه او قوم باندې مثبتې اغېزې لري.

زه له ځوانو زده کوونکو سره ولې لیده کاته کوم؟ د دې پوښتنې د ځواب لپاره مې

د ښوونځي وختونه راياد کړل.

د رميشورم د جزيرې يو ښکلی سفر و. کله چې دې جزيرې ته وکتل شي، نو ډېره په زړه پورې ښکاري. دا څه و چې دا کار يې ممکن کړ؟ خواري وه؟ هوډ و او که هيله وه؟ زما ذهن ته ډېر شيان راتلل. زه په دې پوه شوم، تر ټولو مهمه خبره دا ده، چې ما هر څه د کار په وسيله تر لاسه کړي دي. اساسي خبره دا ده، چې مونږ بايد د ژوند په ارزښت وپوهېږو او له طبيعت څخه په سم ډول ګټه واخلو. تر څو چې زمونږ زده کوونکي او ځوانان په دې باور ونه لري، چې هغوی د يو پرمختللي هندوستان د جوړېدو وړتيا لري، نو په څه ډول به له فکر څخه کار واخلي. د نړۍ د اتو پرمختللو هيوادونو ( g 8 ) په اړه کوم پټ راز نشته. حقيقت دا دی، چې هغوی خپلو موخو ته د رسېدو لپاره زيار او کوښښ کړی دی. زه په دې نظر نه يم، چې خوښي او روحانيت په خلکو کې عام نه دي يا دا، چې د مادي شيانو غوښتنه ناسمه ده. د مثال په توګه: که مونږ شتمن واوسو، نو ژوند به ډېر خوښ وي. که تاسې خپل شاوخوا ته وګورئ، نو پوه به شئ، چې فطرت هيڅ کار په ناسم ډول نه تر سره کوي. په پسرلي کې ګلانو غوټۍ سپړلې وي ټول کائينات په هر ځای کې په ښکلي ډول موجود وي.

په نړۍ کې هر څه يوه ځانګړتيا او استعداد لري. مونږ هم د نورو کايناتو يوه برخه يو او د هغوی په څېر وړتياوې لرو. که مونږ دا ومنو چې روح او ماده دواړه د هستې برخې دي او يو له بل سره همغږي دي، نو مونږ پوهېږو، چې د مادي شيانو غوښتنه شرم دی او يا غير روحاني کار دی. مهاتما ګاندي داسې ژوند درلود، چې د نورو لپاره يو مثال و. تاسې د ګاندي په څېر ژوند څکه غوره کوئ، چې تاسې هغې ته اړتيا احساسوئ او غواړئ، چې د هغه له شخصيت او کارنامو څخه په خپل ژوند کې ګټه واخلئ. له ستونزو سره مبارزه وکړئ او هيڅکله هم تسليم نه شئ. له ځوانانو سره ليده کاته مې د دې لپاره کول، چې هغوی خپلو تېروتنو ته متوجه کړم او د

خوشاله ژوند لپاره چې دوی یې ارمان کړی و، وهځوم.
تاسې چې هره خبره کوئ، نو له زړه نه یې وکړئ او له همدې لارې مینه او خوښي نورو ته وښئ. ما داسې لیدنه په تېرې پوره کې په یوه لبسه کې تر سره کړه. هلته ۵۰۰ زده کوونکي او استادان سره راټول شوي وو. د هندوستان د پرمختګ په اړه مې ښلابېلې پوښتنې تر لاسه کړې. یوازې په دوه پوښتنو یې دلته بحث کول غواړم. لومړی پوښتنه دا وه، چې یو عملي مثال به له کوم ځایه تر لاسه شي؟
مونږ باید د ژوند په ټولو پړاونو کې د ښه ژوند کولو یو ښه مثال واوسو. ماشومان باید تشویق شي. هیڅکله هغوی په ناسم ډول ونه هڅول شي. تر پنځلس کلنۍ پورې زمونږ لپاره ښوونکی او مور پلار ښه مثال کېدلی شي. په دې عمر کې همدا کسان ستاسې لپاره غوره خلک دي. دلته د مور/ پلار او ښوونکي مسولیت تر ټولو زیات دی. زه په دې باور یم، چې همدغه کسان په راتلونکې کې د ماشومانو د پرمختګ سبب کېږي. ماشومان هر څه له مشرانو زده کوي. کله چې مور او پلار پنځه وخته لمونځ کوي او له نورو خلکو سره مرسته کوي، نو ماشومان یې هم زده کوي. زما استاد شوسبرامنیا آیر به زما له پلار سره مالي مرسته کوله او زه به یې ښوونځي ته هڅولم. د مور او پلار لپاره دا ډېره مهمه ده، چې خپلو ماشومانو ته سمې او اړینې لارښوونې وکړي، چې په راتلونکې کې یو ځیرک او زیارکښ انسان شي. ښوونکی د ماشومانو لپاره یو ښه مثال دی، چې په هغو کې نوښتونه او نوي فکرونه ایجاد کړي. دا مثلث هغه حقیقي مثال دی، چې زما په فکر برابر دی. که مور/ پلار او استادان په سمه توګه خپل مسولیت ادا کړي، نو هندوستان به یو نوی ژوند تر لاسه کړي. ماشومان باید د دې لپاره ښووځي او زده کړې ته ونه هڅول شي، چې هغو دې خپل کاروبار پرې وکړي، پوهه د هیواد د پرمختګ او سوکالۍ لپاره باید تر لاسه شي. ګټوره زده کړه په زده کوونکو کې ځیرکتیا او پر ځان باور لوړوي. دا هغه شیان دي، چې مونږ یې باید په نظر کې ونیسو.

یوې نجلۍ په ډېرې ځیرکتیا سره پوښتنه وکړه، چې ترهګر څوک دي؟ له کوم ځایه راپیدا کېږي؟ ایا زمونږ هیوادوال دي؟ زه له ډېر وخت راهیسې د دې پوښتنې په ځواب پسې ګرځم. هغوی له ټولنې او سیاست څخه لرې دي. ځینې وخت یې مخالف هیوادونه ملاتړ کوي او ځینې نورې پوښتنې یې هم وکړې.

ما د ځواب په وخت کې ټولو ناستو کسانو ته وکتل او ومې ویل: که د خیر او شر تر منځ جګړه پېښه شي، نو د خیر او شر په دې جنګ خیر بریالی کېږي، ځکه چې په نړۍ کې له هرې جګړې وروسته سوله بریالۍ ګڼل کېږي. په تېر وخت کې هم مونږ د خیر او شر جنګونه ډېر لیدلي دي. د مثال په توګه: په دوهمه نړیواله جګړه کې داسې بربښي، چې خیر او شر دواړه پاتې کېږي. خدای له دواړو سره په مختلفو اندازو مرسته کوي. څنګه کولی شو، چې شر په روحاني طریقې سره راکم کړو؟ له ټولو انسانانو سره همدا پوښتنه ده.

یو ځل مې په تامل ناډو کې د ډنډې ګل په سیمه کې په یوه ښوونځي کې خلکو ته وینا وکړه. ډېرو زده کوونکو غوښتل، چې له ما سره له نږدې وګوري. دوه زده کوونکو ډېره بېړه درلوده او ویل یې: چې زمونږ د پوښتنې ځواب باید ژر راکړل شي. یوه زده کوونکي پوښتنه وکړه: ما ستا د کتاب (اګ کې پر) ژباړه لوستې ده. ته همېشه د خوب لیدلو پیغام ورکوې. ته ما ته دا ووایه، چې خوب ولې لیدل کېږي؟

ما ځواب ورکړ، چې ټول په یو غږ لاندې کلیمې ولولئ!

خوب، خوب، خوب.

خوب په فکرونو بدلېږي. فکر کول انسان کار کولو ته هڅوي. ما هغوی ته وویل: که خوب نه وای، نو انقلابي فکر به هم نه و. که فکر نه وای، نو کار او عمل به هم نه و. د دې لپاره مور او پلار ته په کار دي، چې ماشومانو ته د خوب لیدلو اجازه ورکړي. له انسانانو خپل مثبت خوبونه تعبیر کړي او په ژوند کې ترې ګټه واخلي، نو دوی د

بریالیتوب لوړو پوړیو ته رسوي. دوی که له هر ډول ناکامیو سره مخامخ کېږي، لـه زیار او کوښښ څخه ګټه اخلي او ستونزمنو حالاتو ته نه تسلیمېږي.

یو بل زده کوونکي پوښتنه وکړه، چې د نړۍ لومړنی ساینس پوه څوک و؟ زما ذهن ته دا خبره راغله، چې ساینس په هر څه کې پوښـتنې راپیـدا کـوي. د سـاینس بنسټ په پوښتنو ولاړ دی. څرنګه چې والدین او ښوونکي ښـه پـوهېږي، چـې د ماشومانو پوښتنې نه ختمېږي او غواړي، چې بیا بیـا پوښـتنې وکـړي، نـو ځکـه «ماشوم لومړنی ساینس پوه دی» ما چې دا ځواب ورکړ، نو ټولـو ناسـتو کسـانو زه ونازولم او زما ځواب یې سم وګاڼه. زده کوونکی زما د ځواب په اورېدو سـره غلـی شو. استادانو او والدینو هم وخندل.

زه له آسام وروسته تېزپور ته هم تللی وم. د تېزپور په پوهنتون کې مې د اسـنادو یا ډیپلوم وېشلو (فراغت) په جلسه کې ګډون وکړ او د ډاکټرۍ افتخاري سند مـې هم تر لاسه کړ. د پوهنتون له زده کړیالانو سره مې ولیدل. ډېر ځوانان هـم سـره راټول شوي وو. ما د ناکام روح په اړه خبرې وکړې. کله چې ما خبرې ختمې کـړې، نو زده کړیالان راټول شول او زما لاسلیک یې واخیست. له دې وروسته ما تـه دوه پوښتنې پیدا شوې. لومړۍ پوښتننه دا وه، چې هغه سیمې(راجستان، تامل نـاډو) چې د اوبو له کمښت سره مخامخ دي، ولې ورته د اوبو غم نه خوړل کېږي؟

یوازې له ماشومانو سره دا ډول فکر پیدا کېږي. مشران د ناممکنو شیانو په اړه فکر کوي. دا پوښتنه دومره سخته وه، چې له ماسره یې هم ځواب نه و. زه په دې بـاور وم، چې وزیراعظم به هم د دې پوښتنې ځواب ونه لري. دې زده کوونکي ته څنګه ووایم، چې اوبه په حکومت پورې اړه لري او زمونږ حکومتونه د اوبو په حقونو باندې سره په جګړه دي. دا خبره رښتیا ده، چې دغه دریاب به یوه ورځ خامخا د دوی په ګټه تمام شي. که څه هم اوس له دې دریاب څخه ګټه نه اخیستل کېږي او هر کال د سېلابونو سبب کېږي. د دې ځواب به څنګه وویل شي؟

ما وویل: هندوستان د ۲۰۲۰م کال له ځوانانو څخه دا غوښتنه لري، چې د سیندونو په رغونه کې زیار وباسي او له هغو څخه په سمه توګه ګټه واخلي. خلک باید د سېلابونو د مخنیوي لپاره بندونه جوړ کړي او خپلې ځمکې ابادې کړي. ځوانان ډېر ښه ذهنونه لري. هغوی د هیواد د پرمختګ لپاره کار تر سره کولی شي او د هر ډول فساد په مخنیوي کې بریالي کېدای شي. تر دې چې د محلي حکومتونو او مرکزونو تر منځ هم اړیکې رغولی شي.

یو بل زده کوونکي له ما داسې پوښتنه وکړه، چې له ماسره یې ځواب هم نه و. هغه وویل: ښاغلیه! لوی خلک له موږ سره اړیکې نه پالي او هیڅ حکومتي چارواکی دې ته نه حاضرېږي، چې له موږ سره ووینې. زموږ وزیراعظم ډېر وخت په چنای، لکهنو او نورو ځایونو کې تېروي، خو دلته نه راځي. موږ له هغوی سره د لیدلو هیله لرو. ما وویل: کله چې زه ډهلي ته ورسېږم، نو ستاسې خبرې به له مشرانو سره شریکې کړم.

له دې وروسته مې له وزیراعظم سره په دې اړه خبرې وکړې. هغوی دا ومنله او ویې ویل: ځوانان له ماسره ډېرې خبرې نه کوي. کېدای شي، چې د ځان ساتنې موضوع د دې سبب شوې وي یا د وخت ځینې خنډونه ددې لامل شوي وي، چې زموږ او د ځوانانو تر منځ یې واټن رامنځته کړی وي. ما د مختلفو برخو مشرانو ته دا وړاندیز وکړ، چې هغوی د خپل ژوند د ښه والي لپاره له ځوانانو سره اړیکې وساتي او له هغوی سره دې لیده کاته وکړي. دا د ځوانانو په پرمختګ کې مرسته کوي. زه جهاړکنډ ته څو ځلې تللی یم. هلته مې په محلي حکومت کې داسې وسایل ولیدل، چې ښځې یې حیران کړم. د شري رام په لبسه کې مې شاوخوا ۳۰۰۰ زده کوونکو ته وینا وکړه. دوی د انځورونو او نورو شیانو نندارتون هم جوړ کړی و. یوه زده کوونکي راڅخه پوښتنه وکړه: جهاړکنډ ډېر شین او سمسور دی. زموږ په هیواد کې ځنګلونه، چینې او غرونه شته. یوازې زموږ راجستان یکې د

دښتې په خبر دی. د دې خبرې لامل څه دی؟

دا پوښتنه په آسام کې هم له ما څخه شوې وه. دا پوښتنه ما ته تکراري ښکارېده. تاسې پوهېږئ، چې شل کاله وړاندې راجستان د کرلو لپاره مناسب نـه و او د اوس په څېر کرنه پکې نه کېده. کله چې د اندراګاندي نهر جوړ شو، نو په بېلابېلو برخـو کې يې بوټي او نيالګي وکرل شول او خلکو ته يې ډېره اسـانتيا رامـنځ تـه کـړه. انسان کولی شي، چې وچه دښته په سمسوره او ښکلې ځمکه بدله کړي. مـا هغـه څه وويل، چې په آسام کې مې ويلي وو. په هندوستان کې بايد د اوبو بندونه جـوړ شي، چې خلک د اوبو له کمښت څخه وژغورل شي. د پرمختـګ لپـاره بايـد کـار وشي. کله چې تاسې لوی شئ، نو تاسې بايد د هندوستان د پرمختګ لپاره ډېر څه وکړئ.

يو ځيرک هلک زما څنګ ته راغی او پوښتنه يې وکړه: ايا ستاسې ميزايل بـه لـه سمندر څخه تېر شي او تر امريکا پورې به ورسېږي؟

زه په دې خبره يو څه ووېربدم. مونږ داسې دښمن نه لرو، چې د ميزايلونو ګوزارونه پرې وکړو او بيا امريکا خو زمونږ ملګری هېواد دی. ميزايلونه، خو زمونږ د ځـواک ښنه ده. دا څرګندوي، چې هندوستان ټولې وړتياوې لري. زه يو وخت کتک تـه د جستېس هري هرمهاتير د سالګرې د نمانځلو لپاره تللی وم. جستېس رنګانات راتـه بلنه رالېږلې وه. دا زما لپاره يوه لويه خبره وه، چې د هري هرمهاتير په څېر له لـوړ شخصيت سره مې وليدل. هغه ۹۲ کاله عمر درلود. هغه د کتېک د سترګو روغتـون او د اتکل پوهنتون جوړ کړل. د بېوزلې د ختمولو لپاره يې هلې ځلې وکړې په اړيـا کې زما د عمر په اړه ټول معلومات خپاره شوي وو. زما له وينا څخـه وروسـته کـم عمره هلکان زما څنګ ته راغلل او بېلابېلې پوښتنې يې وکړې. لومړۍ پوښـتنه دا وه: ستا د خوښې کتابونه کوم دي او له کومو کتابونو سره ته ډېره مينه لرې. کومـو کتابونو ستا د ذهنيت په جوړولو کې مرسته کړې ده؟

ما ځواب ورکړ. په ټول ژوند کې څلور کتابونه زما زړه ته رانږدې دي. زه د هغو په لوستلو خوشالېږم. لومړی کتاب چې زه یې ډېر خوښوم او تل زما ملګری وي دا تر ټولو لوړ کتاب قران کریم دی، دا تل له ماسره ملګری وي. دویم کتاب د ډاکټر الیکسس کیریل(Alexis Carrel) دی. دغه کتاب له ډاکټر څخه فلسفي جوړ کړ او د نوبل جایزه یې هم وګټله. دغه کتاب ناپېژانده انسان(Man The Unknoun) نومېږي.
په دې کتاب کې راغلي دي، چې ذهن او بدن څه ډول کار کوي او له دواړو څخه په څه ډول سمه ګټه اخیستلی شو. ذهن او بدن دواړه یو له بل سره اړیکې لري او یو له بل پرته خپله دنده نه شي تر سره کولی. هغه زده کوونکي باید دا کتاب ضرور ولولئ، چې غواړي په راتلونکې ډاکټر شي. هغوی به په دې وپوهېږي، چې د انسان جسم مېخانیکي سیستم نه لري، بلکې ډېر مغلق جوړښت لري.
بل د تیرووِلور(Tiruvalluvar) تهیرکورل(Thirukkural) دی، چې زما ډېر خوښیږي او د ژوند ډېر اړین مسایل پکې بیان شوي دي. څلورم کتاب د لیلین آیکلر واټسن(Lillian Eichler Watson) د څو څراغونو رڼا(Lights From Many Lamps) دی، چې زه یې ډېر متاثر کړی یم. دا مونږ ته لارښوونه کوي، چې څه ډول بریالي شو او له تېرو خلو ښښتو کلونو راپه دېخوا زما لارښود دی. د ګجرات په آنند سیمه کې یوه هوښیار زده کوونکي راڅخه وپوښتل: زمونږ دښمن څوک دی؟ دا پوښتنه زما خوښه شوه او له بل زده کوونکي مې همدا پوښتنه وکړه. هغه خپل اوږد نظر وړاندې کړ او په خپلو خبرو کې یې د ښوزلی کلیمه بیان کړه. دغه زده کوونکي په ډېر مهارت سره ځواب راکړ، چې زه یې په لاندې ډول بیانوم.
زمونږ خلک ډېر لوړ صلاحیتونه، همدا ددوی غوره ځانګړنه ده او له دې غوره ځانګړتیاو څخه باید ګټه واخیستل شي. ما ورته وویل: هندوستان هر ډول میزایلونه او کیمیاوي وسایل جوړولی شي. دا وړتیا په نړۍ کې یوازې څلور هیوادونه لري. ته له خپل ذهن څخه ټول شکونه وباسه. ما چې زده کوونکي ته دا

خبره وکړه، نو ډاډ يې تر لاسه شو. ما تر اوسه ۴۰ زره زده کوونکو سره ليدلي دي، په دې دوران کې رانه ډېرې ګټورې پوښتنې هم شوې دي، چې له دې پوښتنو څخه مې يوازې يوولس پوښتنې انتخاب کړې. پوښتنې د زده کوونکو سپېڅلتوب ښيي. هغوی د خپل ملت د پرمختګ لپاره هيله لري. زه په دغو ليدنو کې په دې هم وپوهېدم، چې د عملي مثالونو شتون څومره اړين دی. دا مثالونه که په ساينس، صنعت، لوبو او نورو برخو کې وي. پوښتنه دا ده، چې آيا مونږ خپلو ماشومانو ته يو عملي مثال پيدا کولی شو؟

په اوس وخت کې د جين او جينوم په اړه معلومات تر لاسه شوي دي. مونږ په دې وپوهېدو، چې له مور او پلار څخه ماشومانو او نورو نسلونه ته د جين(Gen) په واسطه خصوصيات انتقالېږي. جينونه زمونږ د ژوند د بقا لپاره ډېر اړين دي. د انسان په بدن کې د جينونو مجموعې ته جينوم(Genome) ويل کېږي. جين له يو کيمياوي مرکب څخه چې DNA نومېږي، جوړ شوی دی. DNA ياني، ډي اکسي رايبو نيکوليک اسيد. DNA زمونږ د جسم د جوړښت اساس برابروي. جينونه له څلورو کيماوي مرکبونو څخه جوړېږي، چې عبارت دي له: ايډنين(A)، سايتوسين(C)، ګوانين(G) او تايمين(T) څخه. ژوند هم له همدې څلورو تورو څخه جوړ شوی دی. د ساينسپوهانو په وينا، چې دا څلور توري په درې ارب او څلوښت کروړه کليمو کې کارول کېږي او په سل زره فصلونو کې ځای پر ځای شوي دي. هر فصل ته جين ويل کېږي. جينونه په جينوم کې او جينوم په کروموسوم کې پټ شوی دی. مونږ په ژوند کې ډېرې غوښتنې او اړتياوې لرو او د هغو د لاسته راوړلو لپاره وسيلو ته اړتيا ده. لکه څنګه چې د ژوند لپاره مونږ خوراک، څښاک، تنفس ... ته اړتيا لرو، نو قدرت مونږ ته د جنسي اشتها د پوره کونې يوه بله اړتيا هم را په برخه کړې ده. مونږ د هغه د هېرولو په فکر کې يو، خو دا زمونږ لپاره يوه ښه تجربه کېدای شي. تر ټولو مهمه خبره دا ده، چې له دې پرته مونږ څنګه زده کړه کولی

## شو او څنګه د پرمختګ هیله کولی شو؟

ډاکټر وکرم سربهي له ډېرش کلونو ډېرې هڅې وکړې، خپلې موخې یې تر لاسه کړې او بریالی شو. ده به ډېر زیار او کوښښ کاوه. عملي مثالونه د لاربښود په څېر دنده تر سره کوي. د وکرم سربهي موخو دومره ځواک درلود، چې د هغه له مرګ وروسته هم خلکو په هغو عمل کاوه او له هغو نه یې ګټه اخیسته. تاسې به هم خامخا له یو چا څخه اغېزمن شوي یاست، کېدای شي هغه کوم لوبغاړی، ښوونکی او یا کوم بریالی سوداګر وي.

زه هم له همداسې یوې پېښې سره مخامخ شوی یم. لتامنګیشکر د خپل پلار ماسټر دینانات منګیشکر په یادغونډه کې خبرې کولې. منګیشکر د هندوستان رتن جایزه هم تر لاسه کړې وه. دا زما لپاره د خوښۍ خبره وه. هغه ما ته وړاندیز وکړ، چې په پونا کې د یو څلورسوه بستریز روغتون (دېنانات) او د څېړنې د یو مرکز پرانېسته وکړم. هلته د ٪۳۰خلکو وړیا علاج کېږي. زه دې حقیقت اغېزمن کړی وم، چې هغه له دومره شهرت او دولت سره سره بیا هم له بېوزلو او غریبو خلکو سره مرسته کوله.

د هغه سندرې به تر ډېر وخته په راډیو کې خپرېدې او د خلکو زړونه به پرې خوشاله وو. په ۱۹۶۲م کال کې د هند او چین د جګړې په وخت کې د هغه دې سندرې« ای زما د هیواد خلکو» ټول خلک په غورځنګ راوستل. عملي مثالونه په فرد، ټولنه او قوم باندې ډېره اغېزه لري او هغوی بریالیتوب ته رسولی شي. مونږ باید یوازې د څو کسانو په بریالیتوب باندې بسنه ونه کړو. د ټولو د بریالیتوب لپاره باید کار وکړو. پخواني هندوستان یوه علمي ټولنه او تکړه مشران درلودل. په ریاضي، طب او نور برخو کې یې ډېر پرمختګ کړی و. مونږ باید په پرمختلې ټکنالوژۍ کې بې کچې زیار وباسو، چې هندوستان په نړۍ کې د یوځواک په توګه

په خلکو وپېژنو.

## لنډیز

ځوانان د هیواد لویه شتمني ده. د هیچا زړه باید مات نه شـــي او دې تــه وهڅــول شي، چې په راتلونکې کې د نورو لپاره یو ښه مثال وګرځي. مور / پلار او ښوونکي د عملي مثال په توګه ښه کار تر سره کولی شي. که ځوانان تشویق شي، نو له هغوی څخه په سیاست، ساینس، ټکنالوژۍ او صنعت سربېره په هــره برخــه کــې تکــړه مشران جوړېدای شي.

# رېيم خپرکی

## ځيرک ښوونکي او ساينس پوهان

تاسې چې په ځان کې د کوم کار د ترسره کولو وړتيا وينئ، همدا اوس يې پيل کړئ!

په زړورتيا کې نبوغ، ځواک او جادو نغښتي دي، همدا او س يې پيل کړئ!

گويته

- مونږ په هغو کارونو کې بريالي کېدای شو، چې په زړورتيا او اخلاص سره يې تر سره کړو.
- د يوې پروژې د مشر په توگه تاسې هغه وخت بريالي کېدای شئ، چې، تاسې خپل کار ته ارزښت ورکړئ او که ارزښت ور نه کړئ، نو اداره به مو له ستونزو سره مخامخ شي.
- د مشر يوه ځانگړنه دا ده، چې ځای ناستي يې هم په سمه توگه د کار کولو وړتيا ولري.

ستر خلک دا وړتيا لري، چې خپل مثبت فکرونه په حقيقت بدل کړي او نور خلک هم دې مثبت فکر ته وهڅوي. هغوی ته خپل خلک او قوم د ځان په پرتله ډېر ارزښت لري.

ما د ۲۰۰۰م کال په ډسمبر مياشت کې د ادهيپک رتنارتي ټوټېدري اينگر د پيدايښت په سل کلنه جلسه کې گډون وکړ. زه هغه وخت لا ځوان وم، چې ټي ټوټېدري آينگر مې وليد. هغه په کالج کې زده کوونکو ته د سانس درس ورکاوه.

زده کوونکو هغه ته ډېر په ځير کتل. هغه په هر ځای کې خلکو ته د پوهې او علم لاربښوونه کوله. په هغه کالج کې «کيلکولس سري نواسن زمونږ د رياضي ښوونکی و. هغه پروفيسر ټوټډري ته ډېر احترام درلود. پروفيسر ټوټډري د «بي ايس سي» (آنرز) او« بي ايس سي» (فزيک) د لومړي کال زده کوونکو ته زده کړه ورکوله. ما هم څو ځلي په دې ټولګيو کې برخه واخيسته. زياته برخه مې د الجبر او حساب په ټولګيو کې واخيسته. کله چې مونږ د «بي ايس سي» په لومړي کال کې وو، نو سري نوسن د سينټ جوزف په کالج کې د «کيلکولس» د مضمون استاد و. په دې وخت کې پروفيسر ټوټډري آينګر په دې کالج کې لکچر ورکاوه.

په ۱۹۵۲م کال کې هغه د هندوستان د پخوانيو رياضي پوهانو او فضاپېژندونکو په اړه لکچر وړاندې کاوه. هغه تقريبا يو ساعت خبرې وکړې. هغه خبرې اوس هم زمونږ په ذهن کې دي. هماغه خبرې زه کټ مټ دلته ليکم.

آريابټ چې اوس ورته پټنه وايي په ۴۷۶ ق- م کې په جوکسم پوره کې زېږېدلی و. هغه يو رياضي پوه و او د ستورو په اړه يې هم معلومات درلودل. هغه د رياضي د علم يوه خزانه وه. هغه لا ۲۳ کلن و، چې په دوه برخو کې يې د «آريا بهټيم» په نوم کتاب وليکه. په دې کتاب کې يې د الجبر، حساب او ستور پېژندنې په اړه معلومات ورکړي وو. هغه د مثلث او دايرې د محيط د معلومولو لپاره فارمولونه ليکلي وو او د کُرې او منشور حجم يې ښودلی و. هغه لومړنی شخص و، چې د پای اندازه يې ۳،۱۴۱۶ وټاکله. د پای فارمول د دايرې د محيط او قطر د اندازه کولو لپاره په کاريږي. د دغه ستر عالم له برکته هندوستان په ۱۹۷۵م کال کې مصنوعي سياره فضا ته پورته کړه او دغه سياره يې د آريا بټ په نوم ياده کړه.

برهم ګپتا په ۵۹۸ ق- م د هرش د پاچاهی په وخت کې د راجستان په بلامالا سيمه کې پيدا شوی دی. هغه په دېرش کلنی کې د «برهم سفت سدهانت» کتاب ليکلی و. د ستور پېژندنې په اړه يې نوي معلومات ورکړي وو. د ارتفاع (جګوالي) او

هندسې په اړه يې هم خبرې کړې وې. د بېلابېلو درجو غيرمعينو مساواتو له حــل سربېره يې د مربع مساوات هم حل کړل.

بهسکر اچاريه د خپل وخت يو بل مشهور عالم و. هغه په ۱۱۱۴ق - م کې د اوســني کرناټک او مهاراشټر په سرحد کې پيدا شوی و. هغه شهر افاق کتــاب پــه څلــورو جلدونو کې ليکلی و. هغه په ستورپېژندنه او الجبر کې کــار کــاوه. هغــه لــومړنی مسلمان و، چې د آريا بټ په اړه يې معلومات ورکړي وو او د صفر عدد يــې وضــع کړی و. د «آيي ايس آر او» مرکز د هغه د احترام پــه خــاطر خپلــې دوه مصــنوعي سيارې دده په نوم کړې، چې يــوه يــې (۱۹۷۹م) بهســکر ۱ او بلــه يــې (۱۹۸۱م) بهسکر ۲ نومېدې.

البرټ آين سټاين د دې هندوستاني عالمانو په اړه تبصره کړې وه او ويلي يــې وو، چې مونږ د هندوستان له وګړو څخــه ډېــره مننــه کــوو، چــې هغــوی مــونږ تــه شمېر(حساب) را وښود. د حساب نه بغير هــيڅ ساينســي پرمختــګ نــه کېــږي.

له دې وروسته مې هغه پوهان ذهن ته راغلل، چې مسلمانان وو او تر اوسه زمــونږ په ياد وو. سري نوارام جڼ يوازې ۳۳ کاله ژوندی و(۱۹۲۰ـ۱۹۸۷). هغــه رســمي او عملي زده کړه نه وه کړې. له دې سره سره هغه له روح او خپل مضمون سره دومره مينه لرله، چې هغه ته يې د رياضيکي څېړنو وړتيا وروبښله او د هغه ځينې کتابونه اوس هم لوستل کېږي. رياضي پوهان يې د کار او زيار په اړه څېړنې کوي. رام نجن يو داسې هندوستانی نابغه و، چې د ټرينټي کالج د کيمبرج پروفيسر جي ايچ هارډ يې حيران کړی و. مونږ داسې ويلی شو، چې د هارډي په واسطه رام نجن هم نــړۍ ته وروپېژندل شو. زمونږ مشهور ساينس پوهان په خپلو ښوونځيو کې دغسې يــو بل رام نجن ولې نه شي موندلی؟ تاسې د نفاق او ځانځانی پر ځــای لــه يــووالي او اتفاق څخه ولې کار نه اخلئ؟

د ټولو عددونو په اړه رام نجن ډېر کوښښ کړی دی. دا د هغه لپاره د وياړ خبره ده

او دا خبره دروغ مه ګڼئ. هارډي چې کله تر سلو پورې د پوهانو درجه بندي وکړه، نو ډېرو ته يې په سلو کې دېرش نومرې ورکړې او ډېرو کمو ته يې له سلو شپېته نومرې ورکړې، يوازې رام نجن ته يې له سلو سل نومرې ورکړې. رام نجن ډېر کارونه تر سره کړي، په ځانګړې توګه هندسي بيضوي شکلونه، د دايرې مربع او نور کارونه يې د ستايلو دي.

زه هيله لرم، چې د رياضي تکړه استادان به خپلو زده کوونکو ته د هغه د خدمتونو په اړه معلومات ورکوي. پروفيسر ايس چندر شيکر د هندوستان رياضي پوهنې ته تسلسل ورکړ. له دې سره سره د پروفيسر سي ايس سيشدري، پروفيسرجي وې نارليکر، پروفيسر ايم ايس نرسهمن، پروفيسر ايس آر ايس وردهن، پروفيسر ايم ايس رګهوناتهن، پروفيسر نريندرکُمار او پروفيسر اشوک سين کارونه هم د ستايلو دي. ښاغلي سي وي رمن خپل عملي ژوند د کلکتې د عمومي حساب له دفتر څخه پيل کړی و. هغه به په هر کار کې زحمت او خواري کوله او د هرې ستونزې د حل لپاره يې شپه او ورځ يوه کړې وه. له نوموړي سره لوی عالم اشوتوش مکرجي هم مرسته کوله. اشوتوش به ښاغلي سي وي رمن ته په څېړنيزو برخو کې داد ورکاوه. رمن د رمن اثر(Raman Effect) يا (هغه ذرات او ماليکولونه چې اتم بم ته تودوخه او د وړانګو د انتقال ظرفيت ورکوي) کشف کړ او د همدې ستر کار له امله هغه ته د نوبل جايزه هم ورکړل شوه. دا اکتشاف کوم شتمن سړي نه و کړی او نه کومو دولتونو پرې کار کړی و. زه په دې عقيده يم، چې ښاغلي سي وي رمن د هندوستان د خلکو د بيدارۍ لپاره کار کاوه او هغوی يې د پرمختګ لپاره هڅول. همدا ډول لوړ فکر پروفيسر چندر شيکهر هم درلود. هغه «بليک هول» (په سمندر کې د تورو غارونو له کبله رامنځته کېدونکي ګردابونه) کشف او له همدې امله يې د نوبل جايزه هم تر لاسه کړه. د هغه په اړه په «چندر» کتاب کې ډېر په زړه پورې معلومات ورکړل شوي دي. په دې کتاب کې راغلي دي، چې

هندوستان د ساینس، ادب، او فن زانګو وه. جواهر لعل نهرو، مهاتما ګانـدي جـې، سي بوس، سي وي رمن، میګهند سها، سري نواس رام نجن، رابنـدرنات ټېګـور او داسې نور د خپلو ساینسي او ځاني وړتیاو له کبله د هندوستان اتلان ګڼل کېـږي. د هغوی سترو کارنامو هندوستان ته ډېر پرمختګ ور په برخه کړ. هغه وخت که هر ډول و، خو مونږ ته د چندشیکر خبره د توجه وړ ده، چې هغه ویلـي وو: لـه ۱۹۱۰م کال څخه و ړاندې په نوي عصر کې هندوستان یو نړیوال ساینس پوه نه درلود. پـه ۱۹۲۰ او ۱۹۲۵م کلونو کې په ناڅاپي توګه په مونږ کې پنځه شپږ نړیـوال مشـهور انسانان راپیدا شول. د خپل ځان پېژندل او ځرګندول د قومي تحریک یـوه برخـه وه. هندوستان یو غلام هیواد و. هندوستان په دې وخت کې له نورو هیوادونو څخه شاته پاتې و، خو په ساینسي برخه کې موږ هماغه وخـت د پرمختللـو ځوانـانو د پرمختګ هوډ درلود.

زه دلته د سي وي رمن په اړه یو څه لیکم. هغه په ۱۹۶۹م کال کې زده کوونکو تـه په خپله وینا کې ویلي وو: زه خپلو ناستو ځوانانو، ښځو او سړیو ته دا ویل غـواړم، چې زغم او حوصله له لاسه مه ورکوئ. هغه وخت تاسې بریالي کېدای شئ، چې په خپلو کارونو کې له زړورتیا او جرات څخه کار واخلئ. زه منم، چې هندوسـتانانیان ډېر هوښیار خلک دي. هغه څه چې په مونږ کې یې کمی حس کېږي، هغه زړورتیـا او د متحرک ځواک نشتوالی دی. زه په دې نظر یم، چې اوسمهال په مونږ کې بـې باوري رامنځ ته شوې ده.

هندوستان باید دغه ناکام ذهنیت له منځه یوسي. مونږ بایـد د بریـالیتوب پـه اړه فکر وکړو. داسې ذهنیت باید رامنځ کړو، چې د ټـول هندوسـتان د ویـاړ سـبب وګرځي. داسې کارونه باید تر سره کړو، چې ټولې نړۍ ته یې ګټه ورسېږي. که مونږ تل د ناکامۍ په اړه فکر وکړو، نو هیڅ به هم تر لاسه نه کړو. چا چې په خپلو کارونو کې کوښښ کړی وي، هغوی د کامیابۍ تر لوړو پوړیو رسېدلي دي. جالبه خبـره دا

ده، چې په جنوبي هندوستان کې د لويو سندرغاړو او هنرمندانو يو مثلث هم رامنځ ته شو، چې په هغو کې تهياګر سوامي ګل، متهوسوامي ديکشيدار او شيام شاستري ګل شامل دي. د ازادۍ غورځنګ په موږ کې د هنرونو، ساينس، ټکنالوژۍ او ادب په برخو کې هم لوی لوی مشران را وزېږول. دا مشران د نړۍ په هر ځای کې مشهور دي. په اوسني وخت کې هم مونږ ډېر ځيرک ساينس پوهان لرو. زه دلته د دربو ساينس پوهانو په اړه معلومات وړاندې کوم. د هغو نومونه ډاکټر ډي ايس کوټهاري، ډاکټر هومي جې بها بها او ډاکټر وکرم سربهي دي. زه د ساينس او ټکنالوژۍ په برخه کې د نورو پرمختګونو هيله هم لرم. هغوی د قوم د پرمختګ لپاره ډېرکارونه تر سره کړي دي. هغوی د درې مهمو ادارو (DRDO)، (DAE) او (ISRO) بنسټ ايښودونکي وو. د ډهلي پوهنتون استاد پروفيسر ډاکټر ډي ايس کوټهاري يو تکړه طبيعت پېژندونکی او ستور پېژندونکی و. هغه د مادې د ايونايزېشن (د مادې په اړه يوه کيمياوي عمليه) په اړه هم مشهور و. دا نظريه د ډاکټر سازګروډميګهند سها د حرارتي ايونايزېشن د بشپړېدو يوه برخه وه. کله چې ډاکټر ډي ايس کوټهار په ۱۹۴۸م کال کې د دفاع وزارت ساينسي مشاور شو، نو هغه د هندوستان د دفاعي موخو لپاره د ساينس د استعمال بنسټ کېښود. لومړی کار يې دا وکړ، چې الکترونيکي مواد، کيمياوي طب او پلاستيک ساينس يې رامنځ ته کړل. هغه د هندوستان د دفاعي ساينس بنسټ ايښودونکی و. موږ د هندوستان د ساينس په انسټيټيوټ کې په يوه ځېړنيزه ناسته کې د هغه د خدمتونو يادغونډه تر سره کړه.

ډاکټر بهابها په کيمبريج کې په نظرياتي طبيعت کې څېړنه کړې وه. هومي بهابها له ۱۹۳۰ م کال څخه تر ۱۹۳۹م کال پورې په «آيي آيي ايس سي» بنګلور کې له سي وي رمن سره دنده تر سره کړې وه. له دې وروسته يې کيميا او ساينس ته ډېر ارزښت ورکړ. د ټاټا انسټيټيوټ څېړنيز مرکز يې رامنځ ته کړ. په ۱۹۴۸م کال يې د

ايونوسفيري څېړنو لپاره هم مساعده ده. د دې سيمې په يوه کلي کې پـه زرګونـو کب نيوونکي اوسېدل. هلته د سينټ ميري ميګډالين چرچ(کليسا) او د پاپ بشپ کور هم و. داسې معلومېدل، چې د هغه ځای خلکو لـه خپلـو ځمکـو څخـه ډېـر حاصلات نه تر لاسه کول. يوه ورځ ډاکټر سربهي له پاپ ډاکټر پيټـر برنـارډ سـره وليدل او د ځمکې د انتقال غوښتنه يې ترې وکړه. پاپ په خندا وويل، چې بله بـه ورځ ورسره وګوري. د يکشنبې په سهار پاپ په يوه مذهبي غونډه کې وويل: له ما سره يو مشهور ساينس پوه موجود دی، چې د فضـايي سـاينس او څېړنـې لپـاره زمونږ د عبادت ځای او زما د کور غوښتنه کوي. ساينس د هغو حقيقتونو د تر لاسه کولو په لټه کې دی، چې د انسان د ژوند په ښه کولو کې مرسـته کـوي. د مـذهب لوړه درجه روحانيت دی. روحاني ويناوال د انسانانو په زړونو کې د ارامښت لپـاره له خدای څخه مرسته غواړي. ساينس او روحانيت دواړه د انسانانو د خوښۍ لپـاره د خدای د رحمت غوښتنه کوي. آيا مونږ د خدای ج کور د ساينسي مـوخې لپـاره ورکړو؟ ناست کسان د يو څه وخت لپاره غلي پاتې شول. له لږې چوپتيا وروسـته ټولو مذهبي کسانو هو وويل. له دې وروسته په ټول عبادت ځای کې غوغـا جـوړه شوه او هغه عبادت ځای يې مرکز ته وقف کړ.

ما له ۱۹۶۳م نه تر ۱۹۷۱م کال پورې له ډاکټر سربهي سره کار وکړ. دا زما لپاره يوه لويه تجربه وه. د تهيرونتنهاپورم په فضايي مرکز کې مې د يوه ځوان انجينيـر پـه توګه له هغه څخه ډېر څه زده کړل. که څه هم په دې وخت کې ټکنالوژۍ لا دومره پرمختګ نه و کړی، خو ډاکټر سربهي د مصنوعي سيارو د موټر جوړولو په فکر کې و. هغه په هندوستان کې د لمر په شـاوخوا څرخېـدونکي مصـنوعي سـيارې او د ځمکې په شاوخوا مواصلاتي سيارې مطالعه کولې او د هغو په اړه يې معلومـات تـر لاسه کول. اوس د ځمکې په شاوخوا د څرخېدونکو مصنوعي سيارو د موټر «جـي ايس ايل وي» په وسيله تقريبا حقيقت ته رسېدلی دی. (ISRO) د (IRS) او (I

اتومي انرژۍ اتحاديه رامنځ ته کړه. هغه د موخو په اساس په کيمياوي ساينس او ټکنالوژۍ کې بېلابېل مرکزونه او شعبې جوړې کړې. د مثال په توګه: هغه مرکزونه چې کيمياوي ځواک رامنځ ته کوي او داسې مرکزونه، چې په کيمياوي طب کې څېړنه کوي. د دې ساينسي ادارو په مرسته ډېر ټکنالوژيکي مرکزونه جوړ شول، چې کيمياوي ساينس د هغو يوه اساسي برخه وه. په دغو درې پوهانو کې ډاکټر سربهی تر ټولو کوچنی و او د کايناتي وړانګو په تجربو کې يې سي رمن سره کار کړی و. هغه د فضايي څېړنې لپاره په احمداباد کې د فزيکي څېړنې لابراتوار جوړ کړ. په ۱۹۶۳م کال کې يې د راکټونو د کنټرول له دستګا «تي ای آر ايل ايس» څخه د فضايي څېړنې لپاره راکټونه وتوغول. ډاکټر سربهي د فضايي ساينس او ټکنالوژۍ مرکز رامنځ ته کړ او د مرکز د لارښود دنده يې تر سره کوله. د «آيې ايس آر او» سربېره يې د مصنوعي سيارو موټر، د اهدافو د ترتيب د مديريت او غوښتنو مرکزونه جوړ کړل.

دغو درې ساينس پوهانو د طبيعت د څېړنو مرکزونه جوړ کړل، چې وروسته يې تر دفاعي ټکنالوژۍ، کيمياوي ټکنالوژۍ او فضايي ټکنالوژۍ پورې لمن پراخه شوه. په دې مرکزونو کې تقريبا ۲۰۰۰۰ ساينس پوهانو دنده تر سره کوله. د دغو ساينس پوهانو کړنې په سياسي برخه کې هم ډېره مرسته کولی شي.

که هره ډله په واک کې وي، بايد داسې ټکنالوژيکي وسايل چمتو کړي، چې له خلکو سره مرسته وکړي. ساينس پوهانو يو بل پېغام هم ورکړی دی، چې ساينس او ټکنالوژي د نويو استعدادونو او څېړو په رابرسېره کولو کې ستر رول ادا کړی دی. مونږ ته په کار دي، چې له دې ټکنالوژۍ څخه په سمه توګه ګټه واخلو. په ۱۹۶۲م کال کې ډاکټر سربهي او ډاکټر بهابها په استوايي سيمه کې د فضايي څېړنې لپاره د ځای په لټون کې وو. د کيراله سيمه د تمباکو د کرلو لپاره برابره ده او تمباکو پکې ښه شنه کېږي. ځکه چې استوايي سيمې ته نږدې ده. د

NSAT) نظامونه هم ده پيل کړل، تر څو عام خلک هم د ټکنالوژۍ له ګټو څخه برخمن شي او تر څنګ يې د خلا له ښېګنو هم خلک ګټه واخلي.
د ډاکټر سربهي د فضايي پروګرامونو څخه يوه تجربه داسې ده، چې زه يې بايد له تاسې سره هم شريکه کړم. په دې اړه مې د «اګ کې پر» کتاب کې هم لنډه ليکنه کړې ده. د هندوستان د مصنوعي سيارې د لومړني موټر «ايس ايل وي ۳» د چمتو کولو پروژه وکرم سربهي په فضايي مرکز کې تر سره کړه. د راکټونو د حرارت ورکولو او رهبرۍ نظام او ډيزاين د څو انتخاب شويو مشرانو پر غاړه و. ماته د «ايس ايل وي ۳»څلورم ډيزاين پروژه راکړل شوه، چې د لوړې درجې راکټ و. په وروستي پړاو کې ترکيبي مواد کارول کېږي، چې له وزن سربېره ځواکمن هم وي. کله چې موږ په ۱۹۷۰م کال کې د دې پړاو ډيزاين جوړاوه، نو ما ته له احمداباد نه د ډاکټر سربهي له خوا پېغام راغی، چې هغه د فرانسې د فضايي ادارې «سي اين اى ايس» له مشر پروفيسر هيوبرټ کيورين سره تهيرو ونتهاپورم ته راځي. ما ته ووېل شول، چې زه بايد د پروفيسر کيورين د ټيم د څلورم پړاو په اړه معلومات تر لاسه کړم. کله چې دا کار بشپړ شو، نو زه پوه شوم، چې« ايس ايل وي۳ » تر نورو لوړ ځای لري. «سي اين اى ايس» دې ته اړتيا درلوده، چې هغه بايد د مدار انتها ته د راکټ لېږدولو موټر ولري، چې د هغه د موټر وزن د راکټ دوه برابره و او د دې پړاو کچه هماغومره وه چې موږ مخکې ډيزاين کړې وه.
موږ په غونډه کې دا پرېکړه وکړه، چې په څلورم پړاو کې بايد ډايامونټ پي۴ او( S L V3) دواړه يو ځل بيا جوړ شي. په دې وخت کې موږ د ډيزاين په مرحله کې وو. دا پړاو د «ايس ايل وي ۳ » له نورو پړاوونو څخه مخکې پيل شوی و. لکه څرنګه چې موږ ډېر ډاډمن شوي وو، نو ځکه زموږ دې کار پرمختګ وکړ. دواړو ټيمونو به له يو بل سره خپل نظرونه شريکول. کله چې په ۱۹۷۱م کال کې ډاکټر سربهي مړ شو، نو د فرانسې حکومت د«ډيامونټ پي۴» پروګرام پای ته ورساوه.

ځلورم پړاو چمتو شوی و او ازمايښتونه روان وو، چې يوه بله اړتيا رامنځ ته شوه.
هغه دا چې هندوستان بايد د اروپايي سمندري بېړۍ ( European Arian Lauvnch
Vehicle) په واسطه يوه کوچنۍ مواصلاتي سياره جوړه کړي. ايپل (APPLE) ځينې
مسافر د تجربې لپاره ولېږدول او دا ګټور ثابت شول. په ۱۹۸۱م کال کې يې د
فرانسې له ګيانا څخه د «ايس ايل وي۳ » ځلورم پړاو ازمېښت وکړ. ډاکټر سربهی
چې په ۱۹۷۰م کال کې کومې موخې ټاکلې وې، نو هغه وخت په حقيقت بدلې
شوې، چې ايپل د ځمکې چاپېره مدار تر سره کړ او د ځمکې له دستګاه سره وتړل
شول. د ايپل بريالیتوب دا ثابت کړل، چې که په ساينسي برخه کې له زړه څخه
کار وشي، نو په ډېرې اسانۍ سره خپلې موخې تر لاسه کولی شي. دا بريالیتوب د
هيواد راکټ جوړوونکو ته ډېر ګټور تمام شو. کېداي شي چې هغه ځيرک ساينس
پوهان اوس له مونږ سره نه وي، خو د هغوی موخې رښتونې وې.
د ډاکټر سربهي خوب پروفيسر ستيش دهون په حقيقت بدل کړ. په ۱۹۷۲م کال
کې د «آيي ايس آر او» له دندې وروسته پروفيسر دهون دغه اداره د فضايي ادارې
په ډول جوړه کړه. پرمختګ بې ورکړ او د هغه د ډېر زيار له امله ډېر بريالیتوبونه
تر لاسه شول. ريموټ کنټرول او مواصلاتي سيارې جوړې شوې. د قطبي سيارو
فضايي موټر (The Polar Satellite Launch Vehicle ) په واسطه هندوستان او ځينې
نورو هيوادونو سيارو ته لاره پيدا کړه. په ۱۹۷۲م کال په روهني کې د مصنوعي
سيارې موټر جوړ شو. ما له ډاکټر دهون څخه په مديريت کې دا زده کړې وه، چې
کله څوک د پروژې لارښود (ډايرکټر) وټاکل شي، نو د ادارې ټول غړي د هغه د
بريالیتوب لپاره کار کوي. دا خبره ما ته په ټولو پروژو کې ګټوره تمامه شوه. يوه
خبره بله چې له ځلوېښت کاله دندې وروسته مې زده کړې ده، هغه دا ده، چې که
د پروژې مشر ځان له پروژې څخه لوړ وګڼي، نو هغه به له زيان سره مخامخ کېږي.
زما هغه وخت يادېږي، چې زه په ۱۹۸۰م کال په بنګلور کې د «آيي ايس آر او»

ډایریکټر وم او مونږ د سمندري بېړیو په اړه خبرې کولې.

په ۱۹۸۱م کال کې د «وي ایس ایس سي تهیرونتهاپروم» ساینس پوهانو نور مرکزونه هم جوړ کړل. د الوتلو په وخت کې د «پي ایس وي» وزن تقریبا ۴۰۰ ټنه و. پروفیسر دهون د یو جلا او ساده پلان په اړه فکر کاوه. ما او زما ملګرو شوتهانو پلایي، این سندر راجن او پدم ناب مینن د دغه پلان لپاره د ټکنالوژۍ او اسانتیاو برابرولو مسولیت پر غاړه واخیست. دغه ټیم ډېر نور شیان هم جوړ کړل، چې د ځینو نومونه یې زه دلته لیکم. یو ځانګړی موټر چې رادار یې هم درلود او هر څه یې په اسانۍ سره لیدلی شول. په دغه موټر کې د «ایس ایل ایس۳» د ابتدایي مرحلې د راکټونو تسمې یا پټۍ

(Strap ons) لګېدلې وې. د الوتلو په وخت کې باید د «پي ایس ایل» وزن ۲۷۲ ټنه وای. پروفیسر دهون به هره ورځ زما وړې کوټې ته راته. زما کوټه د هغه له دفتر سره نږدې وه. د پلان په اړه به مو سره خبرې کولې. هغه د ریاضي او انجنیرۍ سربېره د هواپېژندنې متخصص هم و. خپل نظرونه به یې په توره تخته( Black board ) باندې لیکل او مونږ ته به یې ګوتې دنده راکوله. ما د «ایس ایل وي» په ډول د ځمکې ختیځه برخه مطالعه کړه. پروفیسر دهون د خپلې خوښې پلانونه له پوهانو سره شریکول او بحث به یې پرې کاوه. د اوږدمهاله پلان سربېره یې د «پي ایس ایل وي» د سمندري بېړیو ټیم چمتو کړ. پروفیسر دهون سیاروي پروګرامونو ته پام وکړ او د «پي ایس ایل وي او جي ایس ایل وي» د راتلونکو کلونو لپاره یې پلان جوړ کړ او د راتلونکو پنځلس کلونو لپاره یې نقشه جوړه کړه. ما او پروفیسر نرسمها د «پي ایس ایل وي» په پلان باندې یو کتاب ولیکه.

زما لپاره د ۱۹۸۲م کال د می د میاشتې یوډېرشمه نېټه یوه یادګاري ورځ وه. کله چې پروفیسر دهون له ما سره مخه ښه وکړه، هغه د راتلونکي پروګرامونو لپاره د «آیي ایس آر او» (د بحري جنګي بېړیو) غړي د غونډې لپاره راوغوښتل. ما هغوی

ته د «ايې ايس ار او» په اړه معلومات ورکړل. له دې وروسته پروفيسر دهون ما ته د «ډي ار ډي او» مسوليت راکړ. د دهون دغې پرېکړې زه په هره برخه کې بريالی کړم او د بېلابېلو ادارو د پرمختګ سبب شو.

اوس زه د «پي ايس ايل وي» وړتيا لرم او د «جي ايس وي» لپاره چمتووالی نيسم. په ۱۹۸۰م کال کې پروفيسر دهون ټاکل شوي هدف ته نږدې شوی و. د «ايې ايس آر او» د برياليتوب لامل دا دی، چې د هغې بنسټ ډېر قوي و او ښه فضايي پلانونه يې درلودل. د ښه مشرتوب يوه نښه دا هم ده، چې د هغه ځای ناستی بايد وړتيا ولري او د اداري ټول کارونه په سمه توګه تر سره کړي. «ايې ايس آر او» ته پروفيسر «يو آر راو» او ډاکټر کيې کستوري رنګن ډېر برياليتوبونه ور په برخه کړي دي. پروفيسر دهون له تقاعد وروسته د فضايي کمېسيون د يو غړي په حيث دنده تر سره کوله او له خپلې اداري سره يې مرسته کوله. مهمه خبره خو دا ده، چې هغه خپل فضايي پلانونه په خپل ژوند کې عملي کړل. له دې سربېره دده له زده کوونکو هم د ټکنالوژۍ او ساينس لوی لوی پوهان جوړ شول او هيواد ته يې بې شمېره خدمتونه وکړل.

## هغه څومره لويه شتمني وه!

ما د «ډي آر ډي او» د تر لاسه کولو ورسته د ميزايلونو د پرمختګ پروګرام پيل کړ. د غوره ميزايلونو ډيپارټمنټ(انټګريټډ ګايډ ميزايل ډيپارټمنټ) په وخت کې مې د داسې ميزايلونو جوړولو ته پاملرنه کړې وه، چې د ويشتلو په وخت کې يې بشپړ ځواک درلود. له ځمکې څخه ځمکې ته واربدونکي (پرتهوي) ميزايل تر ټولو ښه ميزايل وو. د «ايس ايل وي» لومړی پړاو ميزايل تر لرې واټن پورې ويشتل کېده چې اټمي سرګلولې يې هم لېږدولی شوې. ددې ميزايل نوم اګني و. په ۱۹۸۱م کال کې زه او زما ملګري د بيا تجربه کولو پروګرام تر عنوان لاندې سره راټول شوي وو.

د پرتهوي او اگني ميزايلونــو د چمتــوالي وخــت و. اوس چــې د ترشول(فضــايي ميزايل) او اکاش ميزايلونه چمتو شوي دي، نو دا د خپل وخت پرمختللي ميزايــل دي. ټانک ویجاړونکی میزایل«نــاگ» هــم ډېــر ښــه میزایــل دی. د میزایلونــو د چمتووالي په پروگرام کې که وړه تخنيکي ستونزه هم رامنځ ته شي، نو د ميزايلونو جوړول يې ځنډېږي، خو داسې ستونزې بايد د ميزايل جوړولو ځنډ نه شــي، مــوږ بايد دې مسلې ته پام وکړو. بهرني خرڅوونکي بايد دې ته پرې نه ښودل شي، چې په هندوستان کې ميزايلونه واخلي او يــا يــې خــرڅ کــړي. دا د هندوســتان پــه پرمختګ باندې ناوړه اغېزه لري. زه په دې باور يم، چې زمــونږ هيــوادوال پــه دې برخه کې ځانګړې وړتيا لري او کولی شي هر ډول ټکنالوژيکي وسايل جوړ کړي. د هندوستان «MTCR » په اغېزمنه توگه ځان ازمايلی شي.

لکه څرنگه چې مونږ د ميزايلونو په برخه کې ډېر مهارت درلود، نو د همدې لپــاره مې له «آيې جي ايم ډي پي» سره وليدل. د کروز ميزايل سرعت د هغه له غږ څخه هم زيات دی او په تخنيکي جګړه کې ډېر اړين دی. که څه هم ډېر هيوادونه کروز ميزايلونه لري، خو د هغوی سرعت د هغوی له غږ څخه کــم وي. لــه يــوې روســي اداري (این پي او مشینو ستروینیا) سره مونږ په گډه د سپرسانک کــروز میزایــل جوړ کړ. د دې لامل دا و، چې روس زمونږ ملگری هیواد دی او مونږ یو ډول مهــارت او پوهه لرو. زما هغه وخت هم په ياد دی، چې د «اين پي» او مشــينو ســترويدا لــه عمومي ډايريکټر ډاکټر ايچ ای يفريموف سره مې ليدلي وو او له هغه سره مــې پــه دې پروگرام کې گډون کړی و. هغه د کروز ميزايلونو اووه ډولونه چمتو کــړي وو او په روسي سمندرگي کې يې نصب کړي وو. په ۱۹۹۰م کال کې د هندوستان او روس تر منځ د ټکنالوژۍ گډ پلانونه روان وو. دا زما او ډاکټر يفريموف لپاره يوه ننگونــه وه. کله به چې ما له ډاکټر يفرموف سره ليدل، نو ا احساس به مې کاوه، چې زه لــه پروفيسر ستيشن دهون يا د راکټ جوړولو بابا ورنروان بران سره وينم. د ده ليــدو

به ما ته همدا ساينس پوهان راپه يادول. ډاکټر يفريموف زه هغو ټکنالوژيکي مرکزونو ته بوتلم، چې د بل هيواد خلکو هلته د تګ اجازه نه وه. هغه له ما سره د يو ملګري په څېر چلند کاوه او په خپل لابراتوار کې يې ما ته هندوستاني خواړه چمتو کړل. ډاکټر يفريموف له ما سره حيدراباد ته د ميزايلونو او ټکنالوژۍ يو پرمختللي مرکز ته راغی. هغه زمونږ د وسايلو په ليدو ډېر خوښ شو. زمونږ ساينسي ذهنونه نور هم نږدې شول او ملګرتيا مو نوره هم پخه شوه. مونږ دغه ګډ پلان ته د برهموس(Brahmos ) نوم ورکړ. شوتهانو پلايی، رام ناتهن، وينوګوپالن او وايس ايډمرل بهارت بوشن له روسي عالم سره په ګډو پلانونو کې ونډه واخيسته.

شوتهانو پلايی د دې ګډې طرحې د مشر په توګه غوره شوی و. له دې سربېره يې په «ډي آر ډي او » کې هم دنده درلوده. زمونږ پرله پسې کار او د حکومت ملاتړ د دې طرحې د برياليتوب راز دی. وينو پاګن د پروژې ډايرکټر شو. يوه نوې ګډه طرحه رامنځ ته شوه. د دې طرحې له لارې ددوو هيوادونو ترمنځ پرمختللي ټکنالوژيکي وسايل ډيزاين شول او په ساينس او ټکنالوژۍ کې د پرمختګ سبب شول. څرنګه چې دا کار د دواړو ټيمونو د خوښۍ سبب و، نو زه هم په دې خبره ډېر خوشاله وم. د ۲۰۰۱م کال د جون په دولسمه په چندي پور کې د برهموس لومړنی ازمېښت تر سره شو.

د ۲۰۰۲م کال د اپريل د مياشتې په دولسمه دوهم پرواز وشو او له لومړي پرواز څخه يې ښه پايله درلوده.

ډاکټر يفريموف او زه خوشحاله شوو، چې هندوستان او روسيه دواړه د دې طرحې له لارې يو له بل سره ملګري دي. دوی په ګډه داسې ټکنالوژيکي وسايل جوړوي، چې د نړۍ هر هيواد يې د اخيستلو غوښتنه کوي. په دې برخه کې زما او زما د ملګرو هڅو او کوښښونو ځای ونيو او په خپلو کارونو کې برياليي شوو. زمونږ ملګرو به په ډېره مينه خپل کارونه تر سره کول او زه د دوی له ملګرتيا څخه خوښ يم. ما

د ډاکټر ورګيز کيورين کتاب «نيمګړی خوب» ولوست. هغه په دې کتاب کې وايي: ما په ناڅاپي ډول د شيدو خرڅولو کاروبار پيل کړ. هغه د انګلستاني عالم دې وينا وننګاوه، چې ويلي يې وو، د انګلستان د تشنابونو اوبه هم د ممبيي له شيدو څخه پاکې دي. هغه د شيدو کاروبار ته دومره ارزښت ورکړ، چې اوس هندوستان د شيدو خرڅولو په کاروبار کې لومړی مقام لري.

د آنند په دوره کې ما له هغه سره يوازې يو ځل وليدل. له شيدو څخه بېلابېل خوراکي توکي لکه کوچ، پنېر، ايسکريم او نور جوړېږي . د ده محصولات په لويو هټيو کې خرڅېدل او په خپل کاروبار کې يې ډېر پرمختګ وکړ. کله چې ما له هغه څخه پوښتنه وکړه، چې زمونږ د هيواد د پرمختګ لپاره تر ټولو غوره لاره څه ده؟ نو هغه ځواب راکړ: مونږ بايد د خپلو بزګرانو ستونزې په نظر کې ونيسو. د هغوی له ملاتړ پرته مونږ نه شو بريالي کېدای. د ساينس پوهانو په باره کې مو خبرې کولې، چې طبي متخصص پروفيسر کارکرلاسباراو مې ذهن ته راغی. ما له هغه سره د هند په امريکايي طبي انستيټيوټ کې وليدل او ومې وپوښتل، چې ايا کنسر يوه ناعلاجه ناروغي ده؟ ۷۷کلن اين استاين د هو او نه دوه ځوابونه راکړل. هو! د دې لپاره، چې په مونږ کې په ارثي ډول داسې خواص شته، چې د هغو له امله مونږ په کنسر باندې اخته کېږو. نه! د دې لپاره، چې مونږ په کنسر اخته يو او کنه؟ دا زمونږ په ذهن پورې اړه لري، چې د کنسر د مخنيوي لپاره څه کولای شي؟ په دې برخه کې څېړنې وشوې او يوه نوې پوهه يې رامنځ ته کړه. دې پوهې ته ذهني مدافعت(سايکو نيورو امينولوژي پي اين آيې) ويل کېږي. په دې خانګه کې د ډېرو سختو ناروغيو لکه کينسر، ايډز او نورو په اړه معلومات ورکول کېږي. په نورو څانګو کې د ذهن او زړه په اړه څېړنې تر سره کېږي. يعنې ذهن په څه ډول د وينې د بې نظميو له امله اغېزمن کېږي؟ دا هغه ناروغي ده، چې سم علاج ته اړتيا لري. په دې کې هم زمونږ ذهن ډېره ونډه لري.

## لنډیز

مونږ باید د خپل ژوند لپاره موخې وټاکو، ځکه چې موخې ټاکل ذهنونه بیـداروي. هندوســتان د «جــې آر ډي ټاټــا»، وکــرم ســربهی، ســتیش دهــون او ډاکټــر ورګیزکیورین په ځېر خلکو ته اړتیا لري. هغوی د هیــواد ټــول وګــړي پــه خپلــو پروګرامونو کې په نظر کې نیولي وو او ټولو هیوادوالو ته یې ګټه رسېده.

# څلورم څپرکی

## له صوفیانو او درویشانو څخه زده کړه

د ټولنې لپاره دوه خوښۍ ډېرې مهمې دي. لومړۍ هغه خوښي، چې د دولت د لاسته راوړنو له امله رامنځ ته کېږي. دويمه هغه خوښي، چې په خپله د خلکو له خوا تر لاسه کېږي. کله چې دا دواړه خوښۍ سره يو ځای شي، نو ټول خلک به خوشاله وي.

- زه همېشه ځوانانو ته د خوب ليدلو په اړه سپارښتنه کوم. دا سپارښتنه ځوانانو ته دا لارښوونه کوي، چې هغوی د هر ډول برياليتوب وړتيا لري.
- ښه خلک د حکومت د قوانينو له لارې نه رامنځ ته کېږي.
- په نړۍ کې هر څوک د زور او ځواک درناوی کوي، نو که غواړو چې ځواکمن شو، بايد له همت، زغم او هلو ځلو څخه کار واخلو او له ځانونو خوله تويه کړو.
- له هر کار څخه وړاندې له ځان څخه دا پوښتنه وکړئ! هر څه چې زه وايم او يا يې تر سره کوم، ايا هغه به ما ته ارامتيا راوبښي کنه؟
- تکبر ستونزې راپيدا کوي او تاسو له هر چا نه جلا کوي، تر دې چې له خپل خدای څخه مو هم جدا کوي.
- له ساينس او ټکنالوژۍ څخه د ګټې اخيستلو لپاره دا اړين دي، چې ساينس او روحانيت بايد سره وصل شي.

- زه له ډېرو کلونو وروسته پوهېدلی یم، چې که حالات هر څومره ستونزمن هم وي، مونږ باید خپل مورال له لاسه ور نه کړو او پـه خپـل ذهـن او زړه فشار رانه وړو.
- نور خلک نه شي کولی، چې مونږ ناکام او یا بریالي کړي، یوازې مونږه یـو، چې دا کار تر سره کولی شو.

زه تل ځوانانو ته د خوب لیدلو په اړه وایم. زما خبره دا معنا لري، چې مـونږ تـول بېلابېلې وړتیاوې لرو او باید له خپلو وړتیاو څخه سمه ګټه واخلو. مونږ چې هر څه وغواړو، تر سره کولی یې شو. کله چې این سټاین په لومړي ځل قطب نما(د لـوري مالوموونکې اله) وکاروله، نو ویې لیدل، چې د هغه د لوري په بدلېـدو سـره بـه د قطب نما ستن هم تاوېده. هغه په دې فکر کې و، چې دا ستن څنګه تاوېږي او پـه څه ډول کار تر سره کوي؟ دا څوک کنټرولوي؟ ایا داسې ځایونه هم شـته، چـې دا ستن هلته کار نه کوي؟ په حقیقت کې دا د ځمکې مقناطیسـي قـوه ده، چـې پـه مقناطیسي میدان کې د شمال او جنوب په محور باندې د قطب نمـا سـتن د یـوه کوچني مقناطیس په وسیله ګرځوي. ایا همداسې به وي؟
مونږ مقناطیسي میدان په ډېرې اسانۍ سره لیدلی شو، خو مونږ د خپلو حواسو لـه لارې د هغې اندازه نه شو معلومولی، په داسې حال کې چې دا د ځمکـې پـه ټولـو برخو کې شتون لري. ځمکه په فضا کې تل د حرکت په حال کې ده. په دې سیاره کې چې هر څه موجود وي، د دې حرکت یوه برخه ده. مونږ ته داسې نه معلومېږي، چې مونږ د حرکت په حال کې یو. مونږ د دې قوې یوه برخه یـو او همدغـه قـوه د حرکت سبب کېږي. هغه قوه، چې د دې سیارې اړینه برخه ده، هغه زمونږ په داخل کې هم شته.
ډایر وایي، چې مونږ دغه قوه د شیانو د تر لاسه کولو لپاره کارولی شو. مونږ چـې د هر څه غوښتنه کوو، د هغه د ترلاسه کولو وړتیا په مونږ کې شته.

ما به په دې اړه فکر کاوه او د ساينس او روحانيت په اړه مې معلومات تر لاسه کړل. د دې معلوماتو د لاسته راوړلو لپاره مې له ځينو ځانګړو اشخاصو سره وليدل، په دې کې اکثره اشخاص زما لپاره نوي وو او هغو ما ته داسې خبرې راوښودې، چې ما به ورسره مينه لرله. زه يوه روحاني مرکز ته لاړم، چې هلته بېلابېلې زده کړې تر سره کېدې. په يوه مرکز کې د اندازه ګيرۍ زده کړې کېدې. دې زده کړې زه اغېزمن کړم. په يوه بل مرکز کې د نوي او زوړ ساينس اړيکې مطالعه کېدې. په دې مرکز کې د لومړنيو وختونو د معلوماتو لپاره د سانسيکريټ ځينې اثار هم ايښې وو. ما وليدل، چې يوه صوفي د بېلابېلو مذهبي خلکو لپاره مقناطيس جوړ کړ. ما له يوې ډلې سره د ساينس او روحانيت په اړه بحث وکړ. زه په دې وپوهېدم، چې روحانيت د روغتونونو او پوهنتونونو د جوړولو له لارې نور پرمختګ هم کولی شي. دلته يو داسې مرکز هم و، چې د کينسر د علاج لپاره يې کار کاوه. يوه بل مرکز د طبي ساينس او مراقبې تر منځ اړيکې څېړلې.

ما د ۲۰۰۲م کال د جون په دیارلسمه خپل سفر پيل کړ. کله مې چې په احمداباد کې له سوامي مهاراج سره وليدل. له سوامي جي سره مې د ساينس او روحانيت په اړه خبرې وکړې. زه هغه خبرې ټکي په ټکي دلته رانقلوم.

عبدالکلام: هندوستان په ۱۸۵۷م کال کې غوښتل، چې ازادي واخلي. موږ د يو قوم په حيث د ازادۍ لپاره ۹۰ کاله انتظار وکړ. د دې موخې لپاره د هندوستان ټول خلک( سپين ږيري او ځوانان، شتمن او غريب، باسواده او بېسواده) سره په يوه خوله وو. د ټولو موخه يوه وه. د ټولو نظرونه يو ډول وو او د ازادۍ د تر لاسه کولو لپاره هر څه ته چمتو وو. ښاغليه سوامي! اوس کومه موخه شته او يا به وي ؟ له تېرو پنځوسو کلونو هندوستان يو پرمختګ منونکی هېواد دی. د دې مطلب دا دی، چې هندوستان په ټولنيز ډول ځواکمن نه دی، يعنې ټولنيز ژوند يې د نورو په پرتله کمزوری دی. همدا لامل دی، چې هندوستان ته پرمختګ منونکی هېواد

ویل کېږي. د «ټي آيي ايف ای سي»(د ټکنالوژيکي معلوماتو د وړاندوينې او پاليسۍ جوړولو کونسل) پنځه سوه غړو په دې اړه نظرونه ورکړي دي، چې د هندوستان راتلونکې موخه به څه وي؟ مونږ څرنګه کولی شو، چې په راتلونکو شلو کلونو کې خپل هيواد په يوه پرمختللي هيواد بدل کړو؟ مونږ د هندوستان لپاره پنځه مهې برخې وټاکلې، چې هغه برخې له تعليم، روغتيا، زراعت، اطلاعات، مواصلات او ټکناوژۍ څخه عبارت دي. ښاغليه سوامي! مونږ خو به دا خبرې حکومت ته وړاندې کړو، خو د دې لپاره به وړ کسان څنګه پيدا کړو؟ که داسې کسان پيدا نه شي، نو نور خلک دا وسايل په سمه توګه نه شي کارولی. ښاغليه سوامي! په دې اړه مونږ ستا مشورې ته اړتيا لرو.

سوامي جي: له دې پنځو ځانګو سره سره تاسې شپږمې ځانګې ته هم اړتيا لرئ. هغه دا چې پر خدای باور ولرئ او د روحانيت له لارې خلک دې ته چمتو کړئ. دا ډېره مهمه ده. موږ لومړی يوه اخلاقي او روحاني چاپېريال ته اړتيا لرو. فساد او نور ناوړه کارونه بايد پر بښودل شي. مونږ داسې خلکو ته اړتيا لرو، چې د اسماني کتابونو د قوانينو تر چتر لاندې خپل ژوند تر سره کړي او په خدای ايمان ولري. د دې لپاه مونږ بايد د ايمان څراغ يو ځل بيا روښانه کړو. که داسې وشي، نو ټول کارونه به اسانه شي. زمونږ ستونزې به حل شي او مونږ چې کوم خوبونه وينو، هغه ټول به په رښتيا بدل شي.

عبدالکلام: د هندوستان د پرمختګ لپاره موږ لومړی روحانيت رامنځ ته کړو او که په يوه مهمه برخه

مثلا: (پوهه، روغتيا يا نور) باندې تمرکز وکړو؟ او که ټول کارونه په يو وخت پيل کړو؟

سوامي جي: مونږ بايد په يوه وخت کار وکړو. د هيواد د پرمختګ لپاره، چې تاسې پنځه ځانګې ټاکلې وې، په هغو باندې بايد په پرله پسې توګه کار وشي. زمونږ

ثقافت مونږ ته پارا (روحانيت)، اپارا(دنياوي ګټه) او ودیا(پوهه) را په برخه کوي. هر چا ته په کار دي، چې له دنياوي ګټې سره سره د روحانيت علم هم تر لاسه کړي. روحانيت د دنياوي علم بنسټ تشکيلوي. مونږ بايد په ياد ولرو، چې خدای ج ټول کائينات د خلکو د نيکبختۍ لپاره پيدا کړي.

عبدالکلام: د موخې د تر لاسه کولو لپاره درې ډوله خلکو ته اړتيا ده. لومړی ښه خلک، دوهم ښه مشر اودريم ښه کارکوونکي. که زمونږ په هيواد کې دا درې ډوله خلک زيات شي، نو هندوستان به د نړۍ تر ټولو غوره هيواد شي. مونږ څنګه کولی شو، چې دا خلک زيات کړو؟

سوامي جي: مونږ بايد په خپلو ښوونځيو او پوهنتونونو کې له علمي او ساينسي کتابونو سربېره د روحانيت په اړه هم معلومات ورکړو. نن سبا په ښوونځيو او پوهنتونونو کې د روحانيت په اړه زده کړه نه کېږي. مونږ يوازې په کتابي علم بسنه کړې ده. مونږ بايد له پيل څخه د روحانيت علم زده کړو او په ورځني ژوند کې ترې ګټه واخلو. زمونږ صحيفې او مذهبي کتابونه بايد په نصاب کې شامل شي. ټولنيز، سياسي او روحاني مشران له پيل څخه په سمه لاره روان وو. په تېرو وختونو کې د دغو مشرانو په اړه په نسبي نظام کې معلومات ورکول کېدل. ټولو خلکو به زده کړه کوله. د غريبانو اوشتمنو تر منځ توپير نه کېده. له نور علومو سره سره به يې خلک سمې لارې ته رابلل. په رښتياويلو باندې به يې ټينګار کاوه او پر خدای ج يې د ايمان لرلو درس ورکاوه.

عبداکلام: ښه خلک د حکومت د قوانينو له امله نه رامنځ ته کېږي، ايا روحاني اداري داسې کولی شي؟ ايا تاسې والدينو ته ويلی شئ، چې هغوی بايد تر پنځلس کلونو پورې خپل ماشومان وروزي؟ ټول ښوونکي بايد له خپلو زده کونکو سره کوښښ وکړي او د نصابي کتابونو تر څنګ د روحانيت په اړه هم معلومات ورکړي. که مونږ په دې کار کې ناکام شو، نو حکومت به ښه خلک پيدا نه کړي. ښاغليه

سوامي! ایا زما خبره سمه ده؟

سوامي جي: هو دا سمه ده. مونږ له پیل څخه همـدا خبـره کـوو، چـې والـدین او ښوونکي باید خپلو ماشومانو ته د سترو شخصیتونو په اړه معلومات ورکړي او سمه روزنه یې وکړي.

عبدالکلام: کله چې ما په لومړي ځل یو راکټ وتوغاوه، نو زه په دې کار کـې ناکـام شوم. د«ایې ایس آر او» په مرسته زمونږ ټیم له ناکامۍ سره په جنـګ و. دا خبـره تري ولور په دې ډول کړې ده: کله چې مونږ له ناکامۍ سره مخامخ کېـږو، نـو پـه ډېرې خوښۍ سره باید ناکامي وننګوو، تر څو بریالي شو.

سوامي جي: که یو څوک له داسې حالاتو سره مخامخ کېږي، نو هغه باید لـه خپـل هیواد سره مینه ولري. له همدې امله زه وایم، چې که له پیل څخه د روحانیت علم زده شي، نو له هیواد، ټولنې او خلکو سره یې په طبیعي ډول مینه پیـدا کېـږي. روحانیت د ژوند بنسټ تشکیلوي.

عبدالکلام: روحاني ځواک ډېر مهم دی. له دې سره سره باید ټـولنیز ځـواک هـم ولرو ځکه، چې د زور مخه هیڅوک هم نه شي نیولی او هر څوک ورته احترام لري. د دواړو ځواکونو د لاسته راوړلو لپاره زیار او کوښښ اړین دی.

سوامي جي: مونږ ډېر وخت د انسان د کوښښ او د خدای د رحمت یادونه کوو. کله چې په لومړي ځل ستا راکټ ناکام شو، هغه هم ستا د ګټې لپاره و. هغه ته دې تـه وهڅولې، چې بیا کوښښ وکړې، زیار وباسې او خپلې موخې ته ورسېږې. اخر هـم خدای په دې کار کې بریالی کړې.

عبدالکلام: د هندوستان د پرمختګ لپاره زه د پنځه همفکـره کسـانو د رامنځتـه کېدو هیله لرم او غواړم، چې په ۲۰۲۰م کال کې خپل هدف ته ورسېږم. د دې کـار لپاره ستاسې دعاګانو ته اړتیا لرم.

سوامي جي: له وړاندې څخه هم پر تا باندې د خدای رحمت نازل شوی دی. زه بـه

دا دعا وکړم، چې ستا خیالونه دې خدای په حقیقت بدل کړي او تل بریالی اوسې.
خدای دې هندوستانیان خوشحاله لري او په هغوکې دې ښه روحانیت رامنځ ته کړي. څومره چې روحاني دولت ځواکمن کېږي، نو هغومره د دولت نورې څانگې هم پرمختګ کوي. که تاسې یوازې د دنیاوي ژوند د ښه کولو هڅه کوئ، نو تاسې به په دنیاوي خوندونو کې ډوب شئ. روحانیت له دې څخه لوړه درجه لري او تاسې سمې لارې ته برابروي. هغه شی مونږ ته په اسانۍ لاسته نه راځي، چې مونږ ورته حقیقي اړتیا لرو. مونږ ډېر مادي شیان تر لاسه کوو، خو د دې تر څنګ باید روحاني شتمني هم تر لاسه کړو. کله چې انسان اضافي شتنمي تر لاسه کول غواړي، نو هغه به خامخا له ستونزو سره مخامخ کېږي. هغه به په خپل ځان کنټرول ونه لري.
ښه شوه چې ته نن دلته راغلی یې. زه ستا په راتګ باندې ډېر خوښ شوم. تا زمونږ لپاره ډېر خدمت کړی دی او مونږ له تا څخه ډېره مننه کوو.
زه د ۲۰۰۱م کال د ډسمبر په میاشت کې د صوفي معین الدین چشتي رح زیارت ته لاړم. هغه د غریب نواز په نوم مشهور و. هغه ۱۴۰ کاله عمر درلود. شپږ ورځې یې په خپل عبادت ځای کې خلوت کړی و او بیا وفات شوی و. کله چې زه دربار ته ننوتم، نو د یو ښکلي زیارت ننښه مې ولیده. اته پېړۍ وړاندې یو صوفي بزرګ له عربو څخه اجمیر ته تللی و. اجمیر ته تر رسېدو وړاندې په ډېرو ځایونو کې گرځېدلی و. د هغه د زیارت په شاوخوا کې ډېرو خلکو ژوند کاوه. د خواجه غریب نواز پوهې د خلکو لپاره لوړ پېغام درلود. د هغه وړو خبرو هم په سختو زړونو اغېزه کوله. دومره مینه او اخلاق یې درلودل، چې دښمنان یې هم ورڅخه اغېزمن وو. هغه د سیمې لپاره د وروروڵی او سولې پېغام درلود. چشتي صوفیان د هغه په طریقو روان وو. هغه په حقیقت کې د قومي یووالي بنسټ اېښودونکی و. د خواجه صاحب یادونه په ډېرو کتابونو کې شوې ده.

خواجه صاحب ویلي وو: هغه شخص تر ټولو غوره او خپل رب ته نږدې دی، چې په خپلې غریبۍ قناعت ولري، د دریاب په څېر پراخه سینه او زغم ولري، د لمر په څېر رڼا خپرونکی وي، د ځمکې په څېر ارام پروت وي، په غم کې خوشحاله وي او په دښمنۍ کې ښه چلند وکړي. د ده په وینا له جهنم څخه د خلاصي ښه لاره دا ده، چې وږو ته خواړه ورکړل شي، د ناروغ پوښتنه وشي او له غریبانو سره مرسته وشي. خواجه صاحب د یوه عارف(پېژندونکي) ښلگه داسې وړاندې کړې ده: عارف مرگ خپل ملگری گڼي. راحت او ارامتیا خپل دښمن گڼي او تل د خدای ج ذکر کوي. له خدای ج څخه وېرېږي. د خلکو عزت کوي او حیادار وي.

مونږ ولې عارفان نه یو؟ له هر کار څخه مخکې له ځان څخه دا پوښتنه وکړئ، زه چې کوم کار تر سره کوم، ایا هغه به ما ته ارامتیا راوښيي؟ څرنگه چې ډایر وایي: که جواب په ثبوت کې وي، نو په ډاډمنه توگه له پوهې کار واخلئ . که جواب په نفي کې وي، نو تاسې کبرجن یاست. غرور او تکبر ستونزې رامنځ ته کوي او له هر چا څخه مو جلا کوي، تر دې چې له خدای ج څخه مو هم جدا کوي. د خواجه صاحب په مزار کې مې داسې اوازونه واورېدل، چې خلکو ته به یې سکون او ارامتیا وربښله.

اجمیر د آرالي په غرونو کې پروت دی. هلته له مزار سربېره سپېڅلی جهیل پشکر هم واقع دی. دا دوه مقدس ځایونه د هندوستان د دوو لویو مذهبونو تر منځ د تلپاتې ملگرتیا ښنه ده. اجمیر د یوې سوله ییزې ټولنې ښلگه وړاندې کوي. ما د دې ملگرتیا د شکرانې لپاره لمونځ وکړ. دې منظر ما ته دوه لوی مذهبي مرکزونه ناگور درگاه او ویلانکني چرچ (کلیسا) تر سترگو کړل.

زه د ۲۰۰۱م کال د اکتوبر په دوهمه په کیراله کې د کمپیوټر ټکنالوژۍ انسټیټیوټ ته تللی وم. له ما سره په دې سفر کې د «آیې آیې ایس سي» پروفیسر این بالا کرشنن او «وي ایس ایس سي» ډایرکټر سي مدهون نایر هم ملگري وو. ما تقریبا

۱۰۰۰ زده کوونکو، استادانو، بزګرانو او لوړ پوړو خلکو ته وینا وکړه. زما موضوع «د علم د مصنوعاتو ډېر اړخونه» وه. زده کوونکو ته مې د نويو فکرونو په اړه خبرې وکړې. هغوی د ټکنالوژۍ د پرمختګ په اړه پوښتنې کولې. همدارنګه يې د ښه او نېک ژوند په اړه هم پوښتنې درلودې. د زده کوونکو تر ليدلو وروسته مې له مور سره وليدل. هغه ډېره ښه تجربه وه. هغې خلکو ته دا پېغام درلود، چې مونږ څنګه کولی شو، چې ځانونه خدای ج ته نږدې کړو. زه داسې غيرمعمولي کړنې ته حيران شوم، چې د هغې کړنې په پايله کې داسې اداره رامنځ ته شوه، چې روغتونونه او ښوونځي جوړولی شي او بېوزلو خلکو ته د اوسېدو ځای برابرولی شي. زما دې هڅو له مور او نورو لوړ پوړو خلکو سره د خبرو لاره هوار ه کړه. که څه هم دا اداره د په هره برخه کې د زده کړې زمينه برابروي، خو د تخصص برخه يې لا هم نه ده رغول شوې. مور په ناڅاپي توګه وويل: دلته چې د هر څه کموالی وي، بايد د تر لاسه کولو لپاره يې کوښښ وشي. له وړتياو څخه دې ګټه واخيستل شي.

د راجکوټ په کرايس پوهنتون کې غونډه تر سره کېده. ما د وينا لپاره چمتووالی نيوه. سوامي آنند راته ټيليفون وکړ. سوامي جي راڅخه د عبادت ځای(آشرم) د دورې غوښتنه وکړه. ما هم ورسره ومنله. په کرايس پوهنتون کې له وينا وروسته آشرم ته لاړم. هلته د ماښام د ساز وخت و او پر ما بانـدې سـندرو دومره اغېزه وکړه، چې زه پنځلس دقيقې د مراقبې حالت کې پاتې شوم. په دې وخت کې هم ما ته هغه حالت را په ياد شو، چې د مهاتما ګاندي د پيدايښت په تلين کې مې په سوامي ويويک آنند هال کې مې محسوس کړی و.

د ۲۰۰۱م کال د اکتوبر په شپږمه په کانچي کې « پوهه د پرمختګ لپاره» تر عنوان لاندې لويه غونده جوړه شوې وه. په دې غونډه کې د لرې پرتو سيمو ډېرو بزګرانو هم ګډون کړی و. ما ته يې هم بلنه راکړې وه. دا غونډه د لرې پرتو خلکو د ستونزو په اړه وه. په دې غونډه کې ډېرو سياسي ډلو ګډون کړی و. زه په دې خبره ډېر

حيران شوم، چې يو مذهبي مشر د پرمختګ په کارونو کې مرسته کوي. کله چې غونډه ختمه شوه، نو دواړو ډلو زه وغوښتلم. سوامي جي او اندر سرسوتي ګل چې د الوتکې د راپربوتو په اړه خبر شول، نو ما ته يې دعا وکړه. سوامي جي ما ته وويل، چې د يو مشهور جومات مولوي مې په طمع کړی او هغه زما انتظار کوي.

د هغه دې خبرې ما ته يوه ډېره پخوانۍ خبره را په ياد کړه. دغه خبره ما ته پخواني صدر آر وينکټ رامن کړې وه. رامن راته په کانچې کې له مندر سره د يو نږدې جومات په اړه ويلي وو. څو کاله وړاندې د جومات او ولسوالۍ مسولينو دا پرېکړه کړې وه، چې جومات بايد يو بل ځای ته انتقال کړي. ځکه چې اوسنی ځای د جومات او مندر دواړو لپاره ښه نه دی. له دې امله، چې په زرګونو خلکو د دې تاريخي جومات څخه ليدنه کوله او په مندر کې به هم د خلکو لوی تولي موجود وو. د خلکو د ډېر تګ راتګ له کبله به د موټرو ګڼه ګوڼه هم ډېره وه. د مندر په نوي ځای کې يې د جومات جوړېدو پرېکړه وکړه. کله چې دا پيغام د هغه ځای وکيل ته ورسېد، نو په ښکاره توګه يې مخالفت وکړ. هغوی وويل: کله چې څلورنيمې بجې د سهار اذان کېږي، نو مونږ د خدای ج د عبادت لپاره بيداروي. د ځينو نورو لاملونو له امله هم د جومات له انتقال سره مخالف وو. هغوی د ولسوالۍ او مندر مسولينو ته خپل دريځ په ډاګه کړ او په پايله کې يې د جومات د انتقال مخه ونيوله.

زه وروسته جومات ته لاړم او له مولوي او قاضي سره مې وليدل او هلته مې لمونځ وکړ. تقريبا پنځوسو زده کوونکو د قرانکريم تلاوت کاوه. زه له هغوی سره کېناستم او هغوی څخه مې د فاتحې د سوره پوښتنه وکړه. د فاتحې سوره د قرانکريم په پيل کې راغلې دی. په کانچې کې ځينو خلکو ويدي لوستلو او ځينو به قرانکريم تلاوت کاوه. دې خبرې زه ډېر خوشاله کړم. په دې خبره کې د هندوستان لويوالی او روح نغښتی دی. ايا د کانچي فکر زمونږ او نړۍ لپاره د علم د تر لاسه کولو په

برخه کې یو لارښود کېدلی شي؟

کله مو چې د شنکر د انجنیرۍ پوهنتون له پروفیسرانو، استادانو او زده کړیالانو سره ولیدل، نو مونږ ته دا څرګنده شوه، چې پخواني سانسیکریټ د ادب او ساینس د اصولو یوه خزانه وه. په دې کې د الوتکې د جوړولو په اړه هم معلومات راغلي دي. د طبیعت، کیمیا، طب او ځینو نورو موضوعاتو په اړه هم پکې بحث شوی دی. مونږ باید خپل پخواني عالمان او ساینس پوهان مطالعه کړو او په نوي ساینس کې د هغوی له پوهې څخه کار واخلو.

د وایت فیلډ د لوړو زده کړو د انستیتیوټ له خوا پروفیسر راماراو ما ته بلنه راکړل شوه. مونږ خپله ورځ په عبادت باندې پیل کړه. له دې وروسته مو د شاعرۍ په پروګرام کې ګډون وکړ. دا پروګرام د دې لپاره و، چې مونږ خپل ځانونه له تکبر او کینې څخه وژغورو او پر ځای یې د مینې او محبت ژوند غوره کړو. سایي بابا د خلکو د ستونزو او مشکلاتو په راکمولو کې ډېره ونډه درلوده.

د ۲۰۰۲م کال د جنورۍ په میاشت کې مې په وایټ فیلډ کې د طبي تکنالوژۍ او روغتیا پالنې په یوه غونډه کې ګډون وکړ. دا غونډه د سهار په اووه نیمو بجو پیل شوې وه او د ماښام تر اته بجو یې دوام وکړ. د غونډې له پیله تر پایه سایي بابا ناست و. هغه به د هر چا په خبرو نظر ورکاوه. کله چې ما د زړه په اړه پنځه دقیقې پریزنټېشن ورکړ، نو هغه ودرېده او زه یې تشویق کړم. ناستو کسانو هم زما د تشویق لپاره چکچکې ووهلې. ما چې له کنفرانس سره د سایي بابا علاقه ولیده، نو زه ډېر حیران شوم. د وایټ فیلډ خصوصي روغتون هم ډېر اغېزمن کړم. هغه د چنای د اوبو د کمښت ستونزه هم یاده کړه او د هغې د حل لپاره یې لارښوونې وکړې. دې خبرې ټول خوشاله کړل.

زه د ۲۰۰۲م کال د جنورۍ په میاشت کې له یوې بلې روحاني تجربې سره هم مخامخ شوم. زه په همدې کال د برهم کُماري روحاني اکاډیمۍ ته لاړم او عبادت

مو وکړ. کله چې له عبادت څخه خلاص شوو، نو اوتارشو بابا وویل، چې هندوستان به د ځمکې پر مخ له ټولو هیوادونو څخه ښکلی هیواد شي.

د برهم کُماري د اکاډمۍ له مشر سره مو هم ولیدل. پـه دې اکـاډمۍ کـې د زړه د ناروغانو درملنه کېده. مونږ د ذهن او بدن د اړیکو په اړه خبرې وکـړې. دا هغـه موضوع ده، چې په اړه یې ما د تېر څپرکي په وروستۍ برخه کې یو څـه معلومـات ورکړي دي. دا موضوع د بدني، ذهني او روحاني روغتیا لپاره ډېره ګټـوره ده. زمـا ملګری ډاکټر سلوامورتي له کلونو وروسته د یوې طبـي تجربـې پـه مرسـته دې نتیجې ته رسېدلی دی، چې یوګا او مراقبه له ستونزو څخه د خلاصون غوره لار ده. کله چې زه د دفاع وزارت ساینسي مشاور وم، نو مونږ د ذهن او بدن د همغږۍ پـه مرسته د روغتیاپالنې یوه تجربه تر سره کړه. دغه تجربه مو د فزیالوژۍ او ساینس په انستیټیوټ کې تر سره کړه. ډاکټر پرتاب میډها او ډاکټر سـلوا مـورتي د زړه د ناروغانو لپاره یو ځانګړی علاج وښود. کله چې دوه کاله وړاندې ما لـه دې پـروژې څخه لیدنه وکړه، نو تقریبا شپېته ناروغان ښه شوي وو او ۴۰۰ نور د ښه کېـدو پـه حال کې وو. په دې علاج کې د میتابولیکي فعالیت د ښه والي لپـاره، د خپګـان او تشویش څخه د خلاصون لپاره او لوړې لیپیډمیا د کموالي لپاره یې مناسب خـواړه او پلی تګ غوره وګاڼه. ډاکټران باید د بدن تر څنګ ذهن ته هم پاملرنه وکړي. په برهم کُماري روحاني اکاډمۍ کې د شاملېدو لپاره زه د خور اوشا لـه خـوا د بـرهم کُماریانو سره د بحث مسول وټاکل شوم. هغوی په ډېره مینه په دغـه بحـث کـې ګډون وکړ. د ماښام له ډوډۍ وروسته مو بیا غونډه پیل کړه. ما له هر یو څخه جـلا جلا د هغوی د موخې په اړه پوښتنه وکړه. ټولو په یوه خوله دا ځواب راکړ، چـې د روحاني هڅو له لارې د خلکو خدمت مو موخه ده. ډاکټر سلوامورتي او مـا، چـې د اوایر زر کاله پخوانی نظم واورېد، نو ډېره اغېزه یې راباندې وکړه. د هغه نظم ژبـاړه په لاندې ډول ده:

**د انسان په صفت پیدا کېدل یوه ښه پېښه ده**

**مگر د دې لپاره چې څوک ستونزې گالي او قرباني ورکوي**

**د هغوی لپاره د لوړو مانیو دروازې پرانیستې دي**

بیا مې برهم کماریانو ته وویل، چې څه ډول مذهبي عالم د فضایي څېړنې د دستگاه په جوړولو کې ونډه درلوده؟ ( په دربیم څپرکي کې ولوستل شول) له دې کیسې نه کومې پایلې په لاس راځي؟ برهم کماریانو ځواب راکړی و، چې زمونږ تهذیب ډېر شتمن دی. زمونږ تهذیب د ښه فکر، د همغږۍ پیدا کولو، پوهولو او راپوهولو لپاره لارې پراخوي. د دومره لوی ملت او خلکو تر منځ فرقه یې جگړې ولې کېږي؟ زما په فکر کوم ملتونه، چې موخې نه لري، نو پرمختگ هم نه شي کولی.

د دې لپاره چې انسانان له ساینس او ټکنالوژۍ څخه گټه واخلي، نو هغوی ته په کار دي، چې ساینس او روحانیت سره یو ځای کړي. په ۱۹۱۱م کال کې شري اروبندو« د انسانیت په سندره» کې ویلي وو: داسې وخت به راشي، چې د هندوستانیانو له ذهن څخه به تیاره لرې شي. د نبک کار په اړه فکر کول مو په گټه دي. د خپل ثقافت او تهذیب معنوي اړخ باید په پام کې ونیسو او د ازادۍ لپاره هلې ځلې وکړو.

که مونږ وغواړو، چې د غریبۍ او ببوزلۍ زنځیرونه مات کړو، نو د ښه ژوند لپاره باید همدا ډول هلې ځلې وکړو. زه چې کومو ځایونو ته تللی وم، ټولو یو ډول پېغام درلود. هغه پېغام دا و، چې په هر چا کې یو لوړ ذات(ځان پېژندنه) موجود دی. دا ذات د مادي دنیا له محدودیتونو څخه لوړدی. ما دا لوړ ذات په خپل پلار کې احساس کړی و. ما له کلونو څخه وروسته دا زده کړل، چې که حالات هر ډول هم وي، باید خپل ځان ارام وساتو. ما له ناکامیو او ناهیلیو سره مبارزه کړې او هیڅ کله مې هم د ماتې احساس نه دی کړی. زه غواړم چې په سوله او امن کې ژوند وکړم.

زه له نورو سره د جګړې نيت نه لرم.

دا ننګونه د هغه چا لپاره ده، چې غواړي له خپلو محدوديتونو سره مبارزه وکړي.

په دې ځای کې ما ته د قرانکريم يو سوره رايادېږي:

ژباړه: (ای پيغمبره! ته هغو خلکو ته ووايه، چې ستا پيغـام نـه منـي، د څـه شـي عبادت چې تاسې کوئ، زه د هغه عبادت نه کوم او د څه شي عبادت چې زه کـوم، تاسې د هغه عبادت نه کوئ... ستاسو د عملونو نتيجه په تاسو پورې اړه لري او زما د عملونو نتيجه په ما پورې اړه لري).

مونږ چې هر څه يو او په هر څه چې ايمان لرو، د هغې ذمه واران يوازې مـونږه يـو. که مونږ په خپل خالق ايمان ولرو، نو مونږ به د داسې ايمـان خښتـنان شـو، چـې زمونږ ژوند به په امن کې وي. هندوستانيان د لوړ ذات په اړه ښه پوهېږي. له ډېـر پخوا څخه زمونږ پلرونه او نيکونه د دې فکر تر سيوري لاندې ژونـد کـوي. ځينـو خلکو ته دا نظريه ډېره شريفانه او روحاني ښکاري. زما د ژوند لپاره د بنسټ ډېـره ده.

کله چې زه بنګلور ته روان وم، نو خپل ملګري ته مې وويل، چې زه له ځوانانو سره خبرې کول غواړم. له هغه نه مې په دې اړه مشوره وغوښته. هغه په دې اړه کومـه مشوره رانه کړه، خو لاندې لارښوونې يې رانه وکړې.

(تل رښتيا وايه. په خپله ژمنه وفا کوه. زحمت او خواري وکړه. په خلکـو ظلـم مـه کوه او له ناوړه کارونو څخه ځان وژغوره.)

کوم کارونه تر ټولو غوره دي؟ (د خلکو زړونه خوشاله ساتل، وړو ته ډوډۍ ورکول، له خلکو سره مرسته کول. هغه شخص خدای ج ته تر ټولو نږدې دی، چې د خدای ج د مخلوقاتو د ګټې لپاره ښه کارونه تر سره کوي).

دا ټول د حضرت محمد ص حديثونه دي. زما هغه ملګری چې ما ته يې دا حديثونه ويلي وو، هغه د تامل ناډو د ويدي عالم کړوسی و. هغه بل څوک نه و، سوای ايـس

راجن کې و.

داسې مثال یوازې زمونږ په هیواد کې تر لاسه کېدای شي، لکـه رېـګ ویـد چـې وایي:«آنو بهدره کرتوینتهو وشوتها». د دې مطلب دا دی، چې،خدایـه تـه زمـونږ فکرونه سم کړې.

زما هغه پېښه اوس هم یادېږي، چې زمونږ پـه کـورنی کـې پېښـه شـوې وه. پـه رمیشورم کې زما نیکه او غور نیکه امبلکرر یا غوره لاربنود ګڼـل کېـدل. پـه دې جزیره کې د بګوان رام او راون تر منځ جګړه پېښه شوې ده. په دې جزیره کې یې له روحي ملګرې سیتا سره واده وکړ. زما غور نیکه ځان سینګار کړی و او د وګـره کورامرتهیرتهم سپېڅلي ډنډ څخه د تېربدو لپاره یې یوه وسیله جوړه کـړه. هغـه ډنډ ډېر ژور و. په ښکلو ګلانو باندې سینګار شوی بګوان رام او وګره سره یو ځای د نکاح مراسم تر سره کوي. د تېر په څېر اوس هم د رامیشورم ټول خلک همدلته راټولېږي.

یو وخت زما غور نیکه دا حالات څارل، چې یوه پېښه رامنځ ته شوه. وګره ولوېد او ډوب شو. بغیر له کوم ځنډ څخه هغه ډنډ ته ورټوپ کړل او وګـره یـې راوویسـته. ټولو کلیوالو ورته کتل. د مندر مسوولینو زمونږ کورنی تـه ډېـر احتـرام درلـود. د رمیشورم په جومات کې یې د وګړو د ژغورلو په موخه عبادت وکـړ او د الله تعـالی شکر یې ادا کړ. دې کار زمونږ کورنی ته درنښت ورپه برخه کړ.

دا کار د انساني ورورولی لپاره یوه ښه بېلګه وه. ایا داسې نه شي کېدای، چې مونږ په هر ځای کې یو له بل سره ورورولي ولرو؟

د ۱۹۴۷م کال د اګست په پنځلسمه زه له خپل استاد ریورنډ ایـادورایي سـولومن سره د ازادۍ غونډې ته لاړم. هلته جواهرلال نهرو وینا کوله. د هغه دا وینا، چـې « مونږ ازاد یو» د راتلونکو خبرونو سرټکي وو. د دې خبر تر څنګ یو بـل خبـر هـم راغلی و. هغه دا خبر و، چې مهاتماګاندي د بې وزله خلکو د مرستې لپاره نـواکهلي

ته تللی و. مهاتما گاندي چې د ټول هندوستان بابا گڼل کېږي. هغه د غونډې لپاره د قلعه لال پر ځای نواکهلي ته تللی و . مهاتما داسې فکـر درلـود، چـې دا کـار د ښوونځي په زده کوونکو باندې ډېره اغېزه لري او د هغوی لپاره گټور هم دی.
ما د ټکنالوژۍ په اړه ډېرې څېړنې وکړې او د خلکو د اسانتیاو لپاره مې پر داسـې کارونو فکر وکړ، چې د هغوی ستونزې یې راکمې کړې. په سـتونزمنو حـالاتو کـې هڅه او زیار مونږ بریالي کولی شي. له ستونزو سره د مقابلې لپاره مونږ روحانیت ته هم اړتیا لرو.

## لنډیز

روحاني پوهه ډېره ځواکمنه ده. مونږ د بهرنیو هیوادونو د حملو لـه منفـي اغېـزو څخه ځان ژغورلی شو. مونږ د خپلې ټولنې له هرې طبقې سره په گـډه ژونـد ښـه پوهېږو. مونږ تر ډېره خپلو موخو ته رسېدلي یو او په دې لړ کې د نورو هڅو اړتیـا هم شته. مونږ باید د ښه ژوند لپاره پراخ نظر ولرو او د ژوند په هر ډگـر کـې بایـد پوهه تر لاسه کړو. که مونږ په تخنیکي برخه کې پرمختگ وکـړو، نـو دا زمـونږ د روحاني لوړتیا لپاره خنډ نه شي کېدای.

# پنځم څپرکی

## هیوادپالنه له سیاست او مذهب څخه غوره ده

زه د ازادۍ پروا نه لرم. زه د پسرلي په څېر له نورو سره ښېګڼه کوم.
که ما ته هر څومره ستونزه هم ورسېږي، څه خبره نه ده.
په همدې خبره زه باور لرم.
(سوامي ویویک آنند)

- د داسې سیاست پوهانو د رامنځته کېدو لپاره دعا وکړئ، چې د هیــواد د پرمختګ لپاره کار وکړي.
- زور د زور درناوی کوي، د کمزورۍ نه. د ځواک معنا دا ده، چې مــونږ یــو پیاوړی پوځي قوت ولرو او ټولنه مو خوشحاله وي.
- د یوه ځواکمن قوم په دې شیانو کې بدلون نه راځي: په خپلو بریــالیتبونو باندې ټولنیز ویاړ، یووالی او د ګډ کار وړتیا.
- ناسم فکر، د ملت وېشلو پالیسي او ګډوډ خیالونه ګټورې پایلې نه لري.

پلی تګ زما د ژوند یوه برخه ده. هر سهار پنځه کیلو متره پلــی تــګ زمــا عــادت ګرځېدلی دی. زه د لمر ختلو له ښکلا سره ډېره مینه لــرم. مرغــان د یــوې نــوې ورځې د پیل لپاره نغمې غږوي. هر ځلې چې زه د سهار له یخې هوا، د مرغــانو لــه نغمو او د لمر له ښکلا سره مخامخ کېږم، نو دا خبره مې ذهن ته راځي، چې طبیعت په څومره ښکلي ډول دا عناصر سره یو ځای کړي دي. د دې منظر په لیدو ســره د خدای شکر ادا کوم.

زه بختور یم، چې د خپل کار له امله داسې ښایسته ځایونو ته لاړم. دغو ځایونو د کایناتي حقیقت له امله زما ذهن پراخ کړ. د دې ځایونو له جملې څخه یو هم چنډي پور دی.

له کلکتې څخه تر بالاسور پورې شاوخوا ۲۳۴ کیلو متره لاره ده او چنډي پور له دې ښار څخه ۱۶ کیلو متره فاصله لري. د دې نوم مطلب دی، د ښاپیرۍ کور (هغه ځای چې د عبادت ځانګړی ښځینه بت پکې ایښې وي). د دې ځای ساحل د هندوستان تر ټولو ښکلی ساحل دی. کله چې کښېنتې یو څرخ پوره کوي، نو اوبه د درې کیلو مترو په اندازه شاته حرکت کوي. د اېملي د ونو څانګو او یخې هوا د ساحل ښکلا دوه چنده کړې ده. زه به د دریاب تر شاوخوا پلې ګرځېدم. ما هلته د نېکبختۍ احساس کاوه. مونږ په سرې هرې کوټارینج کې د «آیې ایس آر او» د میزایلونو ازمېښت کاوه. مونږ ازمېښتون ته اړتیا درلوده. لومړنی ازمایښتځای «آیې ټي آر» په ۱۹۸۹م کال کې جوړ شو. دا ازمېښتځای د راکټونو، میزایلونو، او ازمایښتي موټرونو د پرواز لپاره ځانګړی شوی و. په «آیې ټي آر» کې د میزایلونو بېلابېل ډولونه، لکه ترشول ( د ډېرې ورټیا درلودونکي میزایل)، اکاش ( ټانک وېجاړونکی میزایل) پرتهوي (له ځمکې څخه ځمکې ته وار بدونکي میزایل) او اګنې (اورډ واټن ویشتونکي میزایلونه) له همدې ځایه ازمویل کېدل. د سُپرسانک کروز میزایلونه هم د هند او روس له خوا په همدې ځای کې وازمویل شول. د «ایې ټي آر» له خوا ځینې نور ازمایښتونه هم تر سره شول، چې په هغو کې د څو خولو درلودونکي راکټونه او بې پېلوټه الوتکې هم شاملې وې.

د «آیې ټي آر» له خوا د هوایي وسلو ازمېښت ته هم لاره هواره شوه. د لرې واټن ویشتونکي میزایلونو تمرین، د هوایي دفاع د میزایلونو نظام، له الوتکو څخه د وسلو غورځولو نظام، د ډېرو اهدافو وسلې او د تېز سرعت لرونکو میزایلونو د چمتووالي لپاره هم ازمېښتونه تر سره شول. «آیې ټي آر» د سمندر د ساحل سره

سره ۱۷ کیلو متره ساحه لري. په دغه ځای کې د ازمایښتي موټرو سربېره د تمرین الات هم نصب شوي دي. د دغو آلاتو له جملې څخه یې ځینې دا دي: د تګ راتګ(ګشت) لپاره د تمرین کولو سیستم، د رادار بېلابېل ډولونه، د تصویر جوړولو سیستم، د موسم د معلومولو سیستم او د ځان ساتنې لپاره یو ښه نطام. «آيي ټي آر» به په راتلونکي وخت کې یو نړیوال نظام شي.

دا د ۱۹۹۵م کال د جولای د میاشتې د یوې ګرمې او مرطوبې شپې خبره ده. مونږ د میزایلونو د توغولو په څلورم (پرتهوي) ازمایښت کې بریالي شوو. ټول خلک ډېر خوشاله وو. د ۱۲ زره خواریکښو کسانو په استازیتوب مونږ دېرش کسانو په دې فکر کاوه، چې اوس باید څه وکړو؟ د توپخانې مشر جنرال رمیش کهوسله وویل، چې پوځ باید د ۱۵۰ مترو په اندازه په ځمکه کې یو ازمایښت وکړي. په تخنیکي اصطلاح کې دې ته سرکولر ایرر پروبیبلټي «سي ای پي» ویل کېږي.

مونږ د هندوستان یوه جغرافیایي نقشه پرانیسته. له «آيي ټي آر» څخه د ۷۰ یا ۸۰ کیلو مترو په واټن سره پنځه نقطې موجودې وې، چې هغه د ویلر جزایر وو. مونږ د واضح دلایلو له امله راجستان ته نه شو تللی. د اندمان او نکوبار جزیرې ډېرې لرې پرتې وې. د شپې په دوه بجو مونږ دا پرېکړه وکړه، چې د ازمایښت لپاره د ویلر جزایر غوره دي. د سیمې د سروې لپاره مو له یوې الوتکې څخه کار واخیست. یو کس دا نظر ورکړ، چې مونږ تر جزیرو پورې د رسېدو لپاره باید له کب نیوونکو څخه پوښتنه وکړو.

زما دوه ملګري د دهرما په نوم یوې سیمې ته ورسېدل. په دهرما کې هغوی یوه کښتۍ په کرایه ونیوله. هغوی چې کله دې جزیرې ته رسېدل، نو ماښام و. زما ملګري د سلون د سفر په وخت کې د خوراک لپاره له ځان سره مېوه راوړې وه او د ماښام د ډوډۍ پر مهال یې وخوړه. مونږ په جزیره کې تر پاتې کېدو بله لاره نه درلوده. هغه زمونږ لپاره یوه په زړه پورې شپه وه. زما ملګري له سمندر او جزیرې

سره بلد نه وو. هغوی په خوله څه نه ویل، خو په زړه کې وېرېدل. سبا سهار هغوی د جزیرې سروې وکړه، چې تقریبا درې کیلومتره اوږدوالی او اته سوه متره سور یې درلود. د دې جزیرې ختیځ لور ته په یوه ونه کې د بنګله دېش بیرغ او څو کوټنۍ ښکارېدې. داسې معلومېده، چې د ګاونډي هیواد کب نیوونکي همدلته راتلل. زما ملګرو ژر تر ژره جنډه راښکته کړه.

له دې وروسته مونږ هم خپل کارونه چټک کړل. د ولسوالۍ چارواکو، د ځنګل ساتنې او چاپېریال ساتنې د ادارې مهمو غړو هم له دغو جزیرو څخه لیدنه وکړه. ما هم له ځنډه پرته له دفاع وزیر څخه د جزیرې د تر لاسه کولو امر واخیست. د اړیسه له حکومت او ځنګل ساتنې له ادارې سره مو د ځمکې د تر لاسه کولو لپاره رسمي کارونه تر سره کړل. کله مې چې ګورنر یا والي ته د دې سیمې اسناد سپارل، نو له یو شمېر پخوانیو افسرانو سره مې هم ولیدل. د دې تر څنګ مې والي ته په خط کې ولیکل، چې مونږ د «ډي آر ډي» تجربو او ازمایښتونو لپاره جزیرو ته اړتیا لرو.

ما له دغه وړاندیز نه مخکې چمتووالی نیولی و. په دې سیمه کې کب نیونه دود وه او کیشپان به هم له یو ځای څخه بل ځای ته لېږدېدل. د لس ورځو په ترڅ کې ما د والي سره د لیدنې نېټه تر لاسه کړه. ما د والي بیجو پټنایک په اړه یو څه معلومات لرل. هغه یو پخوانی پیلوټ و. کله چې زه له جنرال کی این سنګ او سلون سره د والي دفتر ته ورغلو، نو هغه په ډېره مینه زمونږ هر کلی وکړ. ما ته یې وویل: ای زما ملګریه عبداکلامه! زه د ډاکټر سربهي له وخت څخه تر اوسه پورې ستا له کارونو څخه خبر یم. ته چې هر څه غواړې، زه یې درکوم. هغه د اړیسه د حکومت له لوري څلور واړه جزیرې «ډي آر ډي او» ته ورکړې او په یاد سند یې خپل لاسلیک وکړ او ما ته یې وویل: تا چې څه غوښتل، هغه زه منم. زه پوهېږم چې تاسې به له دې څخه سمه ګټه واخلئ. ستا خدمتونه د هیواد لپاره ډېر ارزښت لري. په اړیسه کې

چې تاسې هر څه ته اړتیا لرئ، نو هغه ستاسې دي. بیا یې له لاس نه ونیولم او په احساساتي ډول یې ما ته وویل: ته به له ما سره دا ژمنه کوې او قوم ته به دا ضمانت ورکوې، چې «ایې سي بي ایم» به جوړوې. کله چې هندوستان خپل «ایې سي بي ایم» جوړ کړي، نو مونږ به نور هم ځواکمن شو. دا مهال ناست کسان ټول غلي وو. ما باید ځواب ورکړی وای. بیجوپټنایک یو حیرانووکی او اغېزمن مشر و. داسې مشر و، چې له خپل قوم سره یې ډېره مینه لرله. زه هغه ته مخامخ شوم او ورته ومې ویل: مونږ به ستاسې د دې غوښتنې د لاسته راوړلو لپاره کوښښ کوو. زه تاسې ته د بیجوپټنایک یوه کیسه په لاندې ټکو وړاندې کوم.

دا د ځلوېښتو کلونو نه هم مخکنۍ خبره ده. کله چې زړور بیجوپټنایک له کالنګا څخه تر جاکارتا پورې الوتکه والوزوله. هغه غوښتل چې له صدر سکارنو، چې په دې وخت کې یې لومړی ماشوم زېږېدلی و، سره وګوري. د سوکارنو د ښځې چې لومړنی ماشوم پیدا شوی و. غوښتل یې چې یو ښه نوم ورباندې کېږدي. په دې وخت کې پټنایک له هغوی سره ولیدل.

سوکارنو دغه خبره له پټنایک سره شریکه کړه. پټنایک هغوی ته مبارکي وویله او د هغوی لور ته یې د میګاوتي نوم غوره کړ. دا د نړۍ د مسلمانانو هغه ستر مشر و، چې په لور یې هندي نوم کېښودل شو. د لوړو خلکو لپاره مذهب د ملګرتیا پاللو یوه وسیله وي. واړه خلک مذهب د جنګ او جګړې لپاره کاروي.

له سیاسي انقلاب وروسته میګاوتي سوکارنو د اندونیزیا پاچا شوه.

زما ملګریه! د هندوستان هغو سیاست پوهانو ته دعا وکړئ، چې زمونږ د هیواد لپاره یې هر ډول ستونزې ګاللې دي. هغه مشرانو ته دعا وکړئ، چې زمونږ قومي یووالی یې ساتلی دی. داسې خلکو ته وخت مه ورکوئ، چې د هندوستان د بربادۍ په اړه فکر لري.

ما د ۲۰۰۲ م کال د مارچ په میاشت کې په اینا پوهنتون کې ۲۰۰ زده کوونکو ته زده

کړې ورکولې. د ټکنالوژۍ په اړه مې لس لکچرونه ورکړل. په وروستۍ ورځ مې د بیا کارېدونکې ټکناولوژۍ په اړه له هغوی سره بحث درلود. یوه زده کوونکې پوښتنه وکړه:

ښاغلیه! ما په تېرو څو ورځو کې د ډاکټر امرت سین وینا لوستې ده. هغه ویلي وو، چې په ۱۹۹۸ م کال کې د هندوستان د کیمیاوي وسلو ازمايښت نیمګړی و. ډاکټر امرت سنګ داسې ټولنپوه دی، چې د نوبل جایزه یې هم ګټلې ده. د پرمختګ په اړه یې نظرونو ته خلک ډېر درناوی لري. د داسې شخصیت تبصره له ذهن نه شو وبستلی. د هغه په تبصرو باندې تاسې څه نظر لرئ؟

ما وویل: زه د ډاکټر امرت سین د ټولنیز پرمختګ عظمت ته درناوی لرم. د هغه ځینې مشورې ستایم لکه لومړني ښوونځي باید لوړ شي. له دې سربېره زه دا احساس کوم، چې ډاکټر امر سین نړۍ ته د لوېدیځ په سترګه کتلي دي. د هغه په آند هندوستان باید د تولنیزې خوښې لپاره له ټولو هیوادونو سره ښې اړیکې ولري. زه د هغه نظر تاییدوم. مونږ باید د هندوستان له تېرو تجربو څخه هم ګټه واخلو. لال نهرو په ملګرو ملتونو کې د کیماوي وسلو جوړولو په خلاف څرګندونې کړې وې او په ټولو هیوادونو کې یې د کیماوي وسلو په نشتون ټینګار کړی و. امریکا لس زره کیماوي سرګلولې (War Head) لري. له روسیې سره هم همدومره دي. له انګلیستان، چین، فرانسې او ځینو نورو هیوادونو سره ګڼ شمېر اټمي کیمیاوي جنګي وسایل شته. په دوهم سټارټ ۲ (START 2) کې د امریکا او روسیې تر منځ دا معاهده کېدونکې وه، چې هر هیواد باید ډېر تر ډېره ۲۰۰۰ اټمي سروکې ولري. د جنګي وسایلو له کمولو سره هیڅا هم علاقه ونه ښوده. څوک چې د ۱۹۹۷م کال د مې د میاشتې له ازمایښت سره خلاف وي، هغوی باید د امریکا او روسیې په څېر هیوادونو ته د جنګي وسایلو د راکمولو وړاندیز هم وکړي. مونږ باید دا په یاد ولرو، چې زمونږ دوه ګاونډي هیوادونه کیمیاوي وسلې او میزایلونه لري.

**ایا هندوستان یوازې د هغوی سیل وکړي؟**

پر هندوستان باندې له تېرو ۳۰۰۰ کلونو راهیسې حملې شوي دي. لــه دې جملــې څخه انګلستان او فرانسې په پرله پسې توګه زمونږ پر هیواد حملې کړي دي. دوی د خپلو سیمو د پراخولو لپاره او یا هم د نورو مذهبونو د خپرولو لپاره دا حملې تــر سره کړي دي. ولې هندوستان پر نورو هیوادونو تېری نه دی کړی؟ (بغیر د تامل له سلطنت څخه) ایا زمونږ پاچا وېرېده؟ خبره دا ده، چې هندوستان نه غوښتل چــې په خلکو باندې حکومت وکړي. کله چې مونږ ازادي تر لاسه کــړه او د هندوســتان خلک سره یو ځای شول، سرحدونه وټاکل شول، نو ایا د ټولنیزې خوښۍ تر چتــر لاندې اوسېدل ممکن دي؟ د یو ځواکمن هیواد لپاره دفاعي ځــواک ډېــر ارزښــت لري. ځواک د ځواک درناوی کوي، د کمزورۍ درناوی نه کوي. د ځــواک مطلــب دا دی، چې د یو هیواد خلک باید خوشحاله هم وي او پوځي زور هم ولري. د ملګــرو ملتونو له خوا هغه هیوادونه په نښه کېږي، چې کیمیاوي وسلې کاروي. کلــه چــې غړي هیوادونه د هندوستان په اړه سلا مشورې وکړي، لــه هغــې وروســته بــه دا څرګنده شي، چې هندوستان د دې غونډې غړی کړي او که نه؟

په همدې اړه زه یوه بله کیسه هم بیانوم. زما ملګري د سمندري ځواکونو متقاعــد افسر ایډمرل ایلرام داس ما ته وویل، چې هغه له یوه ډله خلکو ســره پــه ۱۹۹۸ م کال کې د پارلمان مخې ته د کیمیاوي ازمایښتونو پر ضد لاریــون وکــړ. مــا خپــل ملګري ته وویل، چې هغوی لومړی باید د سپینې ماڼۍ او کریملن مخې ته لاریــون وکړي، ځکه چې هلته تر ټولو زیاتې کیمیاوي وسلې موجودې دي.

زه خپل خلک پرمختګ ته هڅوم. دا د ټولو هندوستانیانو لپاره د بریــالیتوب بلنــه ده. هغه کوم قوتونه دي، چې د قومونو د عروج او زوال ســبب کېــږي؟ هغــه کــوم لاملونه دي، چې د هغو په واسطه قومونه ځواکمن کېږي؟ د یو ځواکمن ملت لپــاره درې لاملونه ډېر مهم دي. لومړی په خپلو بریالیتوبونو باندې ټــولنیز ویــاړ، دوهــم

یووالی او در بیم د ګډکار کولو وړتیا او استعداد.

د یوه هیواد د پرمختنګ لپاره خلکو ته په کار دي، چې هغوی د تېرو شخصیتونو بریالیتوبونه او خدمتونه په یاد ولري. انګلیستانیانو څکه دومره پرمختګ کړی و، چې هغوی د لارډنیلسن، یا ډیوک اف ویلنګټن په څېر شخصیتونه درلودل. په جاپان کې هم د قومي ویاړونو ډېر ښه مثالونه شته. جاپانیان په خپل ثقافت باندې ویاړي. هغوی د یو پوځي ځواک په مقابل کې ودرېدل او بری یې تر لاسه کړ. هغه قومونه، چې د پرمختګ لوړو پوړیو ته رسېدلي دي، هغوی د خپلو موخو د تر لاسه کولو لپاره هلې ځلې کړي دي. دا خبره په جاپانیانو کې ډېره دود ده. همدارنګه په جرمنیانو کې هم دا شعور ژوندی دی. جرمني په درې لسیزو کې دوه ځلې ویجاړ شوی دی. هغوی هیڅکله هم خپل شعور له لاسه نه دی ورکړی. هغه په دویمه نړیواله جګړه کې ډېر ځواکمن هیواد ګڼل کېده. که جرمني پرمختګ کولی شي، نو هندوستان یې ولې نه شي کولی؟

د هندوستان بدبختي دا ده، چې که د هغه زر کاله پخوانی مخینه وکتل شي، نو د تاریخ ټولو ځواکونو د هغه د یووالي لپاره فکر نه درلود. په تېرو پنځوسو کلونو کې په دې اړه هلې ځلې نه دي شوي. ما په ماشومتوب کې د ډېرو مذهبونو په اړه زده کړې وکړې. له تېرو ۷۰ کلونو راهیسې زه په دې پوهېدلی یم، چې د یو مذهب مرکزي فکر روحاني بریالیتوب وي. په دې خبره باید وپوهېږو، چې په هندوستان کې سیکولریزم باید له روحانیت څخه تر لاسه شي. څرنګه چې زمونږ د موخو د تر لاسه کولو شعور کمزوری دی، له همدې امله مونږ د خپل ثقافت په ساتلو کې ربښتوني نه یو. که مونږ خپل ځان ته د هغو خلکو په څېر وګورو، چې په خپل تېر وخت نه ویاړي او په راتلونکي وخت باندې ایمان نه لري، نو مونږ به له ناکامی او ناهیلې پرته بل څه تر لاسه نه کړو. په هندوستان کې مرکزي ثقافت له ډېرې پخوا زمانې څخه دی. دا له اسلام څخه هم وړاندې و. د عیسویت نه هم وړاندې خبره

ده. لومړنيو عيسويانو (لکه په کيراله کې شامي عيسويانو ) په خپل کلک هوډ باندې خپل هندوستانيت ساتلی دی. ايا هغوی له دې امله نيم عيسويان دي، چې د هغوی واده کړې مېرمنې منګل سوتر(د هندوانو د ودونو په مراسمو کې يو ډول غاړکی ده، چې د نکاح په وخت کې ښځې ته په غاړه کې اچوي) په غاړه کوي او د هغوی خلک لنګ تړي؟ د کيراله والي ای کې انتوني په لاس کې د کړی اچولو له امله بدعتي (په دين کې د دين خلاف نوی کار تر سره کوونکی) نه دی، ځکه چې هغه او هلته نور خلک د کيراله د ثقافت يوه برخه ده. د عيسويت له امله هغه پردی نه ګڼل کېږي. د دې برعکس، هغه ته يې د هندوستانيت يو اضافي لوری ښښلی دی. کېدای شي چې ای آر رحمان يو مسلمان وي، خو د هغه غږ هغه وخت د هندوستانيانو په روح کې خپرېږي، کله چې هغه غميزې سندرې وندې ماترم وايي. خلک بايد په ډلو ټپلو ونه وېشل شي، ځکه چې دا يو بد فکر دی. د هندوستان قانون د ټولو هيوادوالو لپاره يو ډول حقوق ټاکلي دي. اوس چې کومه خبره د فکر وړ ده، هغه دا ده چې مذهبي پېژندګلوي بايد پر مذهبي جذباتو باندې غوره وګڼل شي. مونږ خپلو هيوادوالو ته د مذهب پر ځای ثقافتي فکر ولې نه ورکوو؟ اوس وخت رارسېدلی، چې مونږ بايد له نفاق څخه لاس واخلو. اوس مونږ يووالي ته اړتيا لرو.

داسې به هغه وخت وشي، چې مونږ د يو پرمختللي هندوستان په اړه فکر وکړو. له تېر وخت څخه پند واخلو او د يوې خوشحاله راتلونکې لپاره يو ځای کار وکړو. د يو پرمختللي هندوستان لپاره پوهې او يووالي ته اړتيا ده. نوی هندوستان بايد د وخت د غوښتنې په اساس په ټکنالوژۍ، ساينس، زراعت، صنعت او نورو اړينو علومو سمبال وي. سياسي مشران بايد شخصي او انفرادي ګټې پرېږدي او د ټول هيواد او خلکو لپاره کار وکړي. د دې فکر له لارې به د ښارونو او کليو واټن کم شي او د دواړو د پرمختګ لپاره به هلې ځلې ګړندۍ شي. زمونږ مشرانو ته په کار دي،

چې د هیواد په رغولو او پرمختګ کې نه سترې کېدونکې هلې ځلې وکړي. په هندوستان کې د بېلابېلو دینونو او مذهبونو خلک ژوند کوي. د جغرافیایي تنوع (ډولونو) سربېره یې خلک پراخ فکر هم لري. دا زمونږ لپاره تر ټولو ستر ځواک دی، چې دلته ویجاړوونکي فکرونه پایله نه لري او ټول د یو هندوستان غوښتونکي دي. د یو پرمختللي او ځواکمن هندوستان د جوړولو لپاره ځیرکو او هوښیارو مشرانو ته اړتیا ده.

## لنډيز

بریالیتوب له ناکامۍ څخه لاسته راځي. مونږ که له هر څومره ستونزو سره مخامخ کېږو، باید زغم او حوصله له لاسه ور نه کړو. مونږ بېلابېلې عقیدې او فکرونه لرو. مونږ باید د خپل هیواد د پرمختګ لپاره موخې ولرو او هغو ته د رسېدو لپاره کوښښ وکړو. اوس د دې وخت رارسېدلی، چې مونږ ټول باید په یوه خوله د خپل هیواد او خلکو د پرمختګ لپاره کار وکړو او له نفاق او کرکې څخه لاس واخلو.

# شپږم څپرکی

## علمي ټولنه

پوهه هغه وسیله ده، چې بربادي له منځه وړي او خلک پرمختګ ته هڅوي.
پوهه داسې کلا ده، چې دښمن د هغې د ویجاړولو توان نه لري.
تهیروکورل ۴۲۱
(۲۰۰ ق م)

- که څه هم ښوونه او روزنه یو له بل سره نږدې اړیکې لري، خو هنر هم ډېر ارزښت لري.
- زمونږ تاریخ، دودونه او کلتور هم زمونږ د پوهنتونونو په خبر د علم او پوهې سرچینې دي.
- علم د ځواک، خوښۍ او پرمختګ سبب کېږي.
- په یوویشتمه پېړۍ کې یوه نوې ټولنه رامنځ ته کېږي، چې بنسټ یې په علم او پوهې سره ولاړ دی.
- پوهان نه زړ ېږي.

پخواني هندوستان یوه پرمختللې علمي ټولنه درلوده. بهرنیو حمله کوونکو یې ټولې اداري ویجاړې کړې وې. د هندوستانیانو ژوند یې له ستونزو سره مخامخ کړی و. کله چې د انګلستان واکمني ختمه شوه، نو زمونږ ځوانانو خپلو موخو ته فکر ونه کړ او یوازې د روزۍ ګټلو لپاره یې هلې ځلې وکړې. هندوستان په اصل

کې د پوهې او پرمختګ هیواد و. مونږ یو ځل بیا باید له هندوستان څخه د پـوهې زانګو جوړه کړو. د هیواد د پرمختګ، خوښۍ او واکمنۍ د تر لاسه کولو لپاره بایـد هلې ځلې وکړو.

پوهه بېلابېل ډولونه لري او له ډېرو ځایونو څخه تر لاسه کېدای شي. دا له روزنـې، معلوماتو او تجربې څخه تر لاسه کېدای شـي. پوهـه پـه علمـې ادارو، ښـوونکو، کتابونو، مقالو، سیمینارونو او نورو ځایونو کې هم شته. که څه هم پوهه لـه روزنـې سره هم ډېره نږدې اړیکه لري، خو همداسې له هنر څخه هم تر لاسه کېدای شـي. زمونږ په هنرمندانو، حکیمانو، فلسفیانو او صوفیانو کې هم هنر موجود دی. پوهه د هغوی په کارونو او کړنو کې ډېره ونډه لري. زمونږ تـاریخ، دودونـه، کیسـې، چـې زمونږ د شعور یوه برخه ده، د کتابونو او پوهنتونونو په څېر د پوهې سرچینې ګڼـل کېږي. زمونږ په چاپېریال، سمندرونو، نباتـاتو او حیوانـاتو کـې د پـوهې خزانـې نغښتې دي. زمونږ د هیواد هر ریاست د علمي ټولنې د مرکزیت وړ تیا لري.

علم د پرمختګ او خوښۍ سبب کېږي. هندوستان ته به له بېلابېلو هیوادونو څخه خلک د زده کړې لپاره راتلل او د علم لـوی مرکـز و. هندوسـتان ډېـرې طبیعـي ښکلاوې هم لري. په تېره پېړۍ کې خلکو د لاس په وسیله کرنیز کارونه تـر سـره کول، خو د ټکنالوژۍ او پوهې له لارې سخت کارونه اسانه شـول. پـه یوویشـتمه پېړۍ کې یوه نوې ټولنه رامنځ ته شوه. په دې ټولنه کې د خوارۍ او پانګې پر ځای علم لومړی مقام لري. د همدې پوهې پر اساس مونږ په هره برخـه کـې پرمختـګ کولی شو. د پوهې په وسیله مونږ نوي شیان رامـنځ تـه کـولی شـو او د تـولنې د پرمختګ لپاره ترې ګټه اخیستلی شو. د علم او پوهې په وسله هـر ناشـونی کـار اسانه کېدای شي.

علمي ټولنه دوه مهمې برخې لري، چې د ټولنې له پېژندګلوۍ او د دولت لـه عایـد څخه منځ ته راځي. ټولنیزه پېژندګلوي د پوهې، روغتیا، زراعت او واکمنـۍ څخـه

سرچینه اخلي. د داسې ټولنې هر وګړی ښې دندې لري، لوړ عاید لري او د خوښۍ دروازې يې له هرې خوا څخه خلاصې وي. کارونه وړو کسانو ته سپارل کېږي. د «ټي ايې ای سي ټاسک» ټيم له خوا هغه برخې په ګوته شوي، چې د علمي ټولنې په رامنځته کېدو کې مهم رول لري. دا برخې(شعبې) په لاندې ډول دي.

- معلوماتي ټکنالوژي
- حياتي ټکنالوژي(بايو ټکنالوژي)
- فضايي ټکنالوژي(سپيس ټکنالوژي)
- موسمي وړاندوينه
- له ويجاړونې سره د مبارزې وړتيا
- مخابراتي پوهه او طب
- ديني زده کړه
- خدمتي ځانګه
- تفريحي معلومات

له نيکه مرغه دا ټکنالوژي د «ايې ټي کی» په وسيله رامنځ ته کېدای شي. دا هغه ځانګه ده، چې يوازې د ځوانانو د زيارکښ روح په وسيله په عمل بدلېږي. اوس داسې هر اړخېزې ټکنالوژۍ رامنځ ته شوې دي، چې د يوې علمي ټولنې په پرمختګ کې پراخه ونډه لري. څرنګه چې هندوستان په معلوماتي ټکنالوژۍ کې خپل ځای لري، نو کولی شي چې په ډېرې اسانۍ سره علمي ټولنه رامنځته کړي. تر ۲۰۰۸ م کال پورې د داسې اساسي شعبو رامنځ ته کول او د ۵۰ ارب ډالرو عايد تر لاسه کول هغه موضوع ده، چې نن سبا هم پرې بحث کېږي. له دې سربېره په دې اړه هم خبرې روانې دي، چې ۳۰ ارب ډالره بايد له معلوماتي ټکنالوژۍ څخه تر لاسه شي. زه خوشاله يم، چې د هندوستان د پلان جوړونې کميسيون د يوې علمي ټولنې په رامنځ ته کولو کې هلې ځلې کوي. د همدې موخې د تر لاسه کولو

لپاره يې د سړک يوه نقشه هم جوړه کړې ده. زه د دې کمېسيون د مشـر پـه ډول کار کوم.

متوازنه پاليسي، د کار کولو لايحه، په کاري طريقو کې بدلون، د کارکوونکو تاکل او تر ټولو مهم د ځوانو او بااحساسه مشرانو رامنځ ته کول هغه برخې دي، چې د يـو ښه نظام په رامنځ ته کولو کې مرسته کوي. د دولتي عايداتود لوړولو لپاره په کـار ده، چې په يوه وخت کې د ښاري مرکزيت تر نظريې لاندې کـاري پاليســي جـوړه شي او د صنعتي، لابراتواري او تعليمي ادارو تر منځ اړيکې رامنځ ته شي.

تر ۲۰۱۰م کال پورې د يوې علمي ځواکمنې ټولنې رامنځ ته کول د قوم لپاره مهمـه موخه ده. د دې ټولو لپاره پوهې ته اړتيا ده. دا ډېره مهمـه خبـره ده، چـې زمـونږ مواصلاتي او معلوماتي شبکې بايد تر نظارت لانـدې ونيـول شـي، ترڅـو د نـورو هيوادونو له حملو څخه خوندي وساتل شي. د ځمکې د حقونـو پـه اړه هـم بايـد معلومات تر لاسه کړو او خپل پخوانی ثقافت او تاريخ هم له نظره ونه غورځوو.

په ۱۹۶۰ م کال کې ٪۷۴ خلک په کرنه بوخت وو. دا فيصدي په ۱۹۹۲م کال کـې ٪ ۶۲ ته راښکته شوه او هيله لرو، چې تر ۲۰۱۰ م کال پورې تر ٪۵۰ پورې راکمه شي. که څه هم دا وخت کرنيزو حاصلاتو ته دوه برابره زياته اړتيا ده، خو مونږ کولی شو، چې د ښه مديريت له لارې د کرنيزو حاصلاتو ضايعات راکم کړو.

د چنای په مني پال اکاډيمۍ کې د لوړو زده کړو يوه غونډه وه. زه هم هلته غوښتل شوی وم. زه د زرغون انقلاب له بابا سي سبرامينم او ممتاز وکيل سره يوځای لاړم. له غونډې وروسته مې له ۹۰کلن سبرامينم سره د يو بـل زرغـون انقـلاب پـه اړه خبرې وکړې. هغه ما ته د يوه کرنيز بنسټ په اړه داسې معلومات راکـړل: پـه دې بنسټ کې به مخلوط تخمونه چمتو کېدل. دې بنسټ يو لابراتوار درلود، چې خاوره به يې معاينه کوله. همدارنګه بزګرانو ته به يې د مارکېټ او موسم په اړه معلومـات ورکول. بزګرانو ته به د دې خدمتونو له امله ډېره ګټه رسېده. حاصلات به يـې پـه

لوړه بیه خرخول او حاصلاتو یې کم ضایعات درلودل. د هغه موخه دا ده، چې په دې پالیسۍ کې ۱۰۰۰۰۰۰(یو میلیون) بزګران شامل کړي. ځیرک خلک نه زړېږي.
بل وخت مې په پولاچي کې د ډاکټر مهالنګم د انجنیرۍ او ټکنالوژۍ په پوهنتون کې محصلینو ته وینا کوله. ډاکټر این مهانګلم چې یو لوی صنعت کار و، هم له ما سره ناست و. هغه ما ته د کرنې او صنعت د عایداتو د ډېرښت په اړه معلومات راکړل. ده زیاته کړه، چې زراعت او صنعت یو له بل سره نږدې اړیکې لري. په دې برخه کې زه د هغه بریالیتوبونو ته حیران شوم او له هغه څخه مې پوښتنه وکړه: ښاغلیه! تاسې په راتلونکي کې څه موخې لرئ؟
ډاکټر مهالنګم داسې ځواب راکړ: ما په وروستي ځل په داسې شي باندې تجربه وکړه، چې دوه نیم زره کاله پخواني و. اوس په داسې څه باندې څېړنه کوم، چې ۵۰۰۰ کاله پخوانی دی. هغه یو ځل بیا ما ته را په یاد کړل، چې ځیرک خلک نه زړېږي!
په ۱۹۶۰ م کال کې ٪۱۱ خلک په صنعت باندې بوخت وو. تر ۱۹۹۲ م کال پورې همدا فیصدي روانه وه. مونږ په دې فکر کې وو، چې سوداګریز بندېزونه لرې کړو او دا فیصدي تر ٪۲۵ پورې ورسوو. کار او سوداګري به مو نوی شکل غوره کړي. له ۱۹۹۲م کال وروسته ٪۲۷ خلک په صنعت بوخت وو. په «ایې ټي» او تفریحي ځانګو کې ٪۵۰ زیاتوالی راغلی دی. دا بدلون یوازې پوه او ځیرک خلک تر لاسه کولی شي. زمونږ سوداګریز او صنعتي مشران باید د دې کار څخه د بشپړې ګټې اخیستنې لپاره ځان چمتو کړي.
دا رښتیا خبره ده، چې له کلیو څخه ښارونو ته خلک کډه کوي او په ښارونو کې ژوند غوره بولي. دا کار په کلیو او ښارونو کې د استوګنې د معیار تر منځ توپیر رامنځ ته کوي. د دواړو تر منځ باید انډول وساتل شي. دا انډول یوازې او یوازې له دې لارې رامنځ ته کېدای شي، چې په کلیو کې پراختیایي کارونه تر سره شي او

کلیو ته پرمختګ و رکړل شي. په کلیوالو سیمو کې د ښارونو په څېر اسانتیاوې رامنځ ته شي. که داسې وشي، نو په کلیو کې به هم د ښارونو په څېر د خلکو لپاره دندې پیدا شي.

مونږ هیله لرو، چې کلي هم د ښارونو په څېر پرمختګ وکړي. که داسې وشي، نو بیا به هیڅکله هم خلک له کلیو څخه ښارونو ته د کار او روزګار لپاره لاړ نه شي. د «پي. آر. پي. ای» موخه دا ده، چې طبیعي، الکترونیکي او ټولنیز علوم سره یو ځای کړي او ګټه ترې واخلي.

تجربې دا ښودلې ده، چې په هندوستان کې د کلیوالي سیمو اصلي ستونزه دا ده، چې له ښار سره یې اړیکې کمزورې دي. ډېر کلي د یوه سړک په وسیله له ښار سره نښلول کېدای شي او د دوی دا ستونزه له منځه تلای شي. له دې لارې هغه کلیو ته هم ډېره اسانتیا برابرېږي، چې په شاوخوا سیمو کې پراته وي او په یوازې ډول د دې وړتیا نه لري، چې ځان ته سړک جوړ کړي او یا نورې اسانتیاوې رامنځ ته کړي. د دې سړکونو له لارې کلیوالي سیمې له مارکېټونو او پلورنځیو څخه اعظمي ګټه اخیستلی شي، که داسې وشي، نو شتمن خلک اړ کېږي، چې په کلیو کې پانګونه وکړي. خلکو ته د کار زمینه برابرېږي. دا مشورې د کلیو د پرمختګ او ښه ژوند لپاره مونږ ته ډېرې ګټورې دي.

زمونږ په ښارونو کې تر ټولو لویه ستونزه ډېره ګڼه ګوڼه ده. په هره سیمه کې د اوبو اسانتیاو، پاک چاپېریال، سړک او نورو ته ډېره اړتیا ده. په کلیو کې د ښارونو په نسبت کم خلک اوسېږي، نو په کار ده، چې د ښارونو او کلیو تر منځ دا انډول وساتل شي.

د دې لپاره چې هندوستان په علمي برخه کې پرمختګ وکړي، نو په کار ده، چې په کلیوالو سیمو کې اساسي او بنسټیز کارونه تر سره کړي.

د ټاټا کمپنۍ مشر آتن ټاټا ما ته بلنه راکړه، چې باید ټیلکو ته ورشم. له ورتګ

وروسته اټن راته د موټر جوړولو د پرمختګ په اړه معلومات راکـړل. هغـوی بـه د موټر وسایل له نورو هیوادونو څخه راوړل او په خپل هیواد کې به یې ترې موټرونه جوړول. دا کار د هغوی لپاره پـه کمـه بیـه تمامېـده. زه دا هـم زیـاتوم، چـې د هندوستان ټولې اداري باید سره همغږې شي او بیا دې د فابریکو جوړولـو پـه اړه فکر وکړي. ما چې د کومو مسولیتونو یادونه وکړه، د هغو د تر لاسه کولو لپاره موږ د ډېرو صنعتي، علمي او نظامي ادارو له خوا وغوښتل شوو. په ممبیي کـې راڅخـه زده کوونکو په همدې اړه اغېزناکه پوښتنه کړې وه.

موږ په دې باندې ډېر خوښ یو، چې هندوستان «ایس ایل وي» او مصنوعي الوتکې په خپله جوړولی شي. ستراتیژیک میزایلونه او کیمیاوي وسلې هم په لوړه سطحه جوړولی شي. ایا تاسې ما ته ویلی شئ، چې هندوستان به کله داسـې مـوټر جـوړ کړي، چې ټول سامان او انجن یې هم په خپله هندوستان کې جوړ شوی وي؟

کله چې ما په ټیلکو کې د پرزو جوړول او ازمایښت ولیده، نو ما ته وویل شول، چې د فابریکې له خوا په کال کې ۶۰۰۰۰ (شپېته زره) موټرونه جوړ بېږي. له دې وروسته راته پورته پوښتنه ذهن ته راغله. ما د پورته پوښتنې ځواب په عملـي توګـه تـر لاسه کړ.

په ۲۰۰۰م کال کې زه د واېپرو له خوا د ګرځنـده کلینـک پرانیسـت غونـډې تـه وغوښتل شوم. دا کلینک په بنګلور کې د زړه د ناروغانو لپاره و. دا د واېپرو جي او کلین‌ایزډ د بنسټ تر منځ یو ګډ کار و. زما ملګري ارون تیواړي او ما د دې پـروژې لپاره سیستم جوړاوه. هغه زما لپاره یوه لویـه تجربـه وه. لـه پرانیسـت غونـډې وروسته زه د «واېپرو جي ای» مرکز ته لاړم. هلته پرمختللي ټکنالوژیکي وسایل او تخصیصي طبي وسایل جوړېدل. کله چې زه هلته ننوتم، نو یو ځوان زما څنګ تـه راغی او زما په جامو باندې یې ملي بیرغ ولګاوه. ما هغه تـه لاس ورکـړ او ورڅخـه ومې وپوښتل: ای ځوانه! ایا ته به دې هیواد ته خدمت وکړې؟ هغه ځواب راکـړ: زه

تشخیصي طبي وسایل جوړوم. زه یوه داسې دنده تر سره کوم، چې د ټول انسانیت لپاره ګټه لري. ما ته دلته ډېره اړتیا لیدل کېږي. زه د هغه له ځواب څخه خوښ شوم.

له غونډې وروسته د واپیرو مشر «پریم جي آر ډي او» تر مېلمستون پورې له ما سره راغی. په لاره کې هغه وویل: زه په کرناټک کې د پوهنې په برخه کې کار کوم او خلکو ته پوهنیزې اسانتیاوې برابروم. مونږ په مېلمستون کې چای څښه او له هغه څخه مې پوښتنه وکړه. په کاري نړۍ کې واپیرو څنګه دومره پرمختګ وکړ؟

پریم جي یو مهم ځواب راکړ: دلته درې لاملونه ډېر مهم دي. لومړی د خلکو زیار او کوښښ، دوهم مونږ په واپیرو کې د خلکو د خوښۍ لپاره کار کوو، دریم بخت هم ډېر مهم دی. که دوه لومړني ټکي تر لاسه نه شي، نو دریم ټکی هیڅ پایله نه لري. په واپیرو کې مونږ د خلکو د خوښۍ سربېره د شتمنۍ د لاسته راوړلو لپاره کار کوو.

د دې ادارو تر منځ یوه شریکه ځانګړتیا دا ده، چې هغوی اوس هر ډول ټکنالوژیکي وسایل جوړولی شي. د هڅاندو وګړو رامنځ ته کول، د خلکو وړتیاوې، له ټولنیز احساس سربېره د شتمنۍ تر لاسه کول او تر ټولو لویه خبره د ځوانانو ویښ ذهنونه، هغه څه دي، چې یوه علمي ټولنه تشکیلوي.

مهارشي پتانجلي په یوګاسوترا کې ویلي وو:

کله چې تاسې د یو لوړ هدف د تر لاسه کولو لپاره کلک هوډ ولرئ، نو ستاسې ذهن په هر ډول محدودیتونو بریالی کېږي. ستاسې شعور پراخېږي او تاسې خپل ځان په یوه لویه نړۍ کې وینئ. په تاسې کې په سلګونو وړتیاوې راژوندۍ کېږي او بریالي کېږئ.

دا پېغام زمونږ د ټولو لپاره دی. دا د ټولو خلکو لپاره د پرمختګ سبب کېدای شي. د زیار او کوښښ له لارې خلک خپل هیواد ته ډېر خدمتونه کولی شي. ویښ ذهن

هغه وسیله ده، چې د هغه له لارې هیواد او خلک پرمختګ کولی شي.

## لنډيز

پخواني هندوستان يوه علمي ټولنه درلوده، چې زموږ تهذيب تــه يـــې ډېــر ځــه ورکړي وو. موږ بايد هماغه درجه يو ځل بيا تر لاسه کړو او يوه علمي ټولنه رامنځ ته کړو. موږ بايد له خپلو تېروتنو څخه زده کړه وکړو. د ناکامی کليمه لــه ذهنونــو څخه وباسو او د بريالیتوب لپاره هلې ځلې وکړو.

# اووم څپرکی

## د ځواکونو یو ځای کېدل

کلک هوډ وکړئ او هیڅکله مه ناهیلي کېږئ!
که کلک هوډ ولرئ، تاسې به بریالي شئ او خپلې موخې به تر لاسه کړئ!
ابراهام لنکن

- پرمختګ د سلامتۍ او خوښۍ سبب کېږي.
- په هندوستان کې ۳۰ـــ ۴۰ اربه خلک بېوزله او غریب دي.
- د کلک هوډ او زغم له لارې ځوانان کولی شي، چې د هیواد پــه پرمختــګ کې ونډه واخلي.
- یوه ډېره مهمه خبره، چې ډېرو خلکو ته نه ده معلومه، هغه دا ده، چې پــه هندوستان کې د ۳۵ کلونو څخه د کم عمره ځوانانو شمېر ۷۰ کروړه دی.

هغه هیوادونه پرمختګ کوي، چې ښه او وړ نظام ولري، خلک یې د پوهې په ګانــه سمبال وي او په بنسټیزو کارونو کې سیاسي دخالت ونه لــري. پرمختــګ دې تــه وایي، چې یو هیواد په هره برخه کې پیاوړی وي او د بېوزلۍ د لمنځه وړلو لپاره کار کوي. د ۲۰۲۰م کال لپاره مونږ پنځه داسې ځانګې ټاکلې دي، چې د هغو له لارې به هندوستان د ډېرو شیانو وړتیا تر لاسه کړي.

له دې پنځو برخو څخه یې لومړی د پرمختللي کرنیز سیستم رامنځته کول دي. په دې برخه کې مونږ د ۳۶کروړه ټنه خوراکي او کرنیزو توکو د برابرولو هدف تــاکلی دی. پرمختللې کرنه د کلیوالي سیمو او بزګرانو لپاره خوښــي رامــنځ تــه کــوي او

ټولنیز پرمختګ یې نور هم زیاتوي.
دوهمه څانګه د وړتیاو ده. د هندوستان اکثره خلک د ډېرو کارونو د تر سره کولو وړتیا لري. په کار ده چې له دې وړتیاو څخه د هیواد د پرمختګ لپاره ګټه واخیستل شي او له دې لارې بېلابېلې اسانتیاوې رامنځته شي.
دریمه برخه د پوهې او روغتیا ساتنې ده. مونږ ته له څېړنو څخه دا معلومه شوې، چې پوهه او روغتیا ساتنه یو له بل سره نږدې اړیکې لري. د مثال په توګه: په کیراله کې د پوهنې او روغتیا ساتنې اسانتیاوې رامنځ ته شوې دي، نو له همدې امله د هغه ځای خلک ښه ژوند لري. همدا ډول په تامل ناډو کې هم د ماشوم او مور روغتیا ته پاملرنه کېږي او هغوی اوس په دې پوهېدلي دي، چې د ماشومانو د زېږون تر منځ وقفه ګټوره ده. د اندهراپردیش خلک هم باید په دې وپوهېږي او هغوی ته دا لارښوونه وشي، ځکه چې هغوی لا په دې خبره عمل نه دی کړی او هلته بغیر له وقفې څخه ماشومان پیدا کېږي.
څلورمه څانګه د معلوماتي ټکنالوژۍ ده. دا زمونږ د بنسټیزو وړتیاو له ډلې څخه ده او اوس په هره اداره کې دې ته اړتیا لیدل کېږي.
پنځمه څانګه ډېره ستراتیژیکه ده. له نیکه مرغه له دې لارې په کیمیاوي، فضایي او دفاعي ټکنالوژۍ کې پرمختګ شوی دی. که له دغو پنځو شعبو څخه په سمه توګه ګټه واخلو، نو د پرمختګ لپاره به بېلابېلې لارې پرانېستل شي. د دې موخې د تر لاسه کولو لپاره باید ټولې ادارې په ګډه کار وکړي، ځکه چې یووالی د بریالیتوب کیلي ده.
که د پوهې او روغتیا ساتنې له اسانتیاو څخه ټول خلک په یو ډول برخمن شي، نو دا به ټولنې ته نور ځواک هم وروبښي. دا په ورځنیو کارونو کې د ټولنې د پرمختګ کیلي ده. د کرنې له لارې خوراکي توکي برابرېږي. خلکو ته کار پیدا کېږي او د ټولنې د پرمختګ سبب کېږي. د معلوماتي ټکنالوژۍ له امله هم خلکو

ته د کار زمینه برابرېږي او چټک پرمختګ رامنځ ته کوي. بر ېښنا په نورو برخو کې اسانتیاوې رامنځته کوي او د ټولو شعبو لپاره ډېره مهمه ده. د صنعت ستراتیژيکه شعبه په تلپاتې پرمختګ او ټکنالوژیک استحکام باندې نېغه اغېزه کوي. د متوازن پرمختګ لپاره دا پنځه شعبې ډېرې مهمې دي. د پنځو شعبو د مجموعي اغېزو په نتیجه کې په «ډي پي او» کې د زیاتوالي له امله د ۱۰٪ خلکو ژوند ښه شــوی دی او له ۳۰ څخه تر ۴۰کروړه خلک له بېوزلۍ څخه ژغورل شوي دي.

ما د (TIFAC) له ټیمونو سره په کرنه، لوړو زده کړو او د کلیو د پرمختګ په برخــه کې کار کړی دی. ما له دوی سره د بورې په جوړولو کې له خپلــو پخوانیــو تجربــو څخه ګټه واخیسته. «ټي ایې ایف ای» له یوه نوموتي زراعت پوه پروفیسر ایس کی سنها سره د منځني بهار د سیمې او ختیځ هندوستان لپاره د کرنیــزو حاصــلاتو د ډېرښت په موخه یوه پروژه پیل کړه.

په ۱۹۹۸م کال کې د کرنې په موسم کې په یوه سیمه کې شپږ او په بله سیمه کــې نهه کلي انتخاب شول. په دې پلان کې د خاورې تجزیه، د تخــم اتنخــاب، د کرلــو موسم، کود(سره) او د بزګرانو روزنه شامل وو. د بزګرانو او زراعت پوهــانو دې ګــډ کار د غنمو په حاصلاتو کې څو برابره ډېروالی راوست. یعنې د غنمو پــه حاصــلاتو کې له دوه نیم ټن في هکتار څخه نیولې تر پنځه ټن فــي هکتــار پــورې ډېروالــی راغی. کله چې زه او ایس راجن ځینو کلیو ته لاړو، نو ومو لیــدل، چــې بزګرانــو د فصل د ربېلو له آلاتو، د زېرمه کولو له اسانتیاو او د بازارموندنې له اســانتیاو ســره ډېره علاقه درلوده. دا خبره څرګنده شوه، چې د بېلابېلو شعبو خلک په یوه لــرې پرته سیمه کې هم کار تر سره کولی شي او په کم لګښت سره ډېره ګټه تــر لاســه کولی شي.

د REACH(په ښوونیزو برخو کې وړتیاوې او د هغو تر منځ اړیکې) له خوا یوه نــوې څېړنه روانه وه. د دې کار موخه دا وه، چې له ۸۰ څخه تر سلو پورې داسې ښوونیز

مرکزونه جوړ شي، چې د ټولو لپاره ښه پایله ولري. د دې مرکز له خوا د شعبو په اړه څېړنه کېږي او تر منځ يې اړيکې څېړل کېږي. د دې پلان له لارې په پتيالـه، ديېروګړ، ممبۍ، تهنجاور او سورت کې په کرنيزه او صنعتي بايوټکنالوژۍ، دپټرولو د زېرمه کولو انجنيرۍ، صنعت، محيطي انجنيرۍ او د وطني درملو په ځانګو کې د اړيکو ښه مرکزونه جوړ شوي دي. د «آر اې ای سي ایچ» په پروګـرام کـې زمـونږ تجربه دا وه، چې صنعت د دې مرکزونو د چلونې لپاره ۴۰٪ لګښت پـرې کولـو تـه چمتو دی. د ټکنالوژۍ پرمختګ او په ښوونه کې د صنعت ګډون زمونږ باور نور هم زيات کړی دی. له دې سربېره د ډاکټر «ایم ایس وجې رګهون» کـارونو خلکـو تـه ډېره ګټه رسولې ده. هغه دا فکر درلود، چې صنعت بايد د زده کړې په نصاب کـې شامل شي.

د کليوالو اړيکو د پروګرام اړوند يو بل مثال د «آيي آيي تـي» د پروفيسـر پـي وي اندرسين په مشرتوب کې څرګندېږي. څرنګه چې وړاندې وويل شول، چې خلـک له کليو څخه ښارونو ته کډه کوي او هلته د کـار لپـاره ځـي، نـو د دې سـتونزې یوازينی حل لاره دا ده، چې بايد په کليوالو او لرې پرتو سيمو کې اساسـي کارونـه تر سره شي او هلته هم د ښارونو په څېر د ښه ژوند اسانتياوې برابرې شي. څرنګه چې پروفيسر اندرسين يوه ښېلګه وړاندې کړه. که په کليـوالي سـيمو کـې د کـار زمينه مساعده شي او د ښارونو په څېر اسانتياوې رامنځ ته شي، نو بيا به خلک له کليوالي سيمو څخه ښارونو ته هجرت نه کوي. که په بشپړ ډول داسې ونه شي، خو د کليوالي خلکو په هجرت کې به کمښت راشي. په اوس وخت کـې د دې پـلان د عملي کولو لپاره بېلابېل ټکنالوژيکي وسايل شته، په دې شرط، چې په ټولو ځانګو کې له دغه فکر څخه ګټه واخلو.

مونږ د «پي يو آر ای» په نوم د پرمختګ د پروګرام لپاره د «پي اي اي کـی» څلـور ډوله اړيکې يادوو، چې هغه طبيعي، الکترونيکي، ټولنيزې او پوهنيزې اړيکې دي.

زه تیر کال په حیدراباد کې یوه روغتون ته لاړم. دا روغتون د وړانګه لرونکو درملو لپاره ځانګړی شوی و. د روغتون انګړ له ډاکټرانو، انجنیرانو، کمپیوټرپوهانو او سافټ ویر پوهانو څخه ډک و. د ناروغانو د ګردو فعالیت یې معلوماوه او د الکټروکارډیوګرافي کار پیل شوی و. دلته له ډېرو لرې سیمو څخه ناروغان راتلل.

د ډاکټرانو او ناروغانو تر منځ ټولنیزه اړیکه د مصنوعي سیارې په وسیله د ویډیویي اړیکې له لارې ټینګه شوې وه او ناروغان یې معاینه کول. د «ای سي جي» معلومات د شعاع لرونکي عکس په وسیله دې روغتون ته را ولېږدول شول او روغتیایي معلومات په لږ وخت کې تر لاسه شول. ما په دې لوی روغتون کې د ناروغانو د ګردو او زړه فعالیت د التراساونډ له لارې ولید، چې دا یې د متخصصو ډاکټرانو د مشورې لپاره رالېږلي وو. په داسې ځایونو کې چې طبي اسانتیاوې نه وي، په هغو سیمو کې له دې روغتیایي طریقې څخه ګټه اخیستل هیله بښونکي دي. د شعایي طب له لارې به په کلیوالو سیمو کې ډېر پرمختګ رامنځ ته شي او اساسي روغتیایي مرکزونه، سیمه ییز روغتونونه او د ولسوالیو روغتونونه به د مرکز له تخصصي مرکزونو سره ونښلي. زه دې خبرې حیران کړم، چې د سټلایټ له لارې معلومات لېږدول کېږي. دلته طبي ساینس او انجنیري په ګډه د ناروغانو علاج کوي.

زه په ۱۹۹۰م کال کې د سترګو د علاج لپاره د سترګو روغتون ته تللی وم. دغه روغتون په مدورایي کې واقع دی. کله چې زه روغتون ته ننوتم، نو د ناروغانو یو منظم قطار ولاړ و. هر ناروغ به په خپل وار ډاکټر ته ورتلو. قطار ډېر اوږد و. ناروغان هم په چټکۍ سره تلل. په نیم ساعت کې زما وار هم راورسېد. ما په ډاکټر نیچیار باندې خپلې سترګې معاینه کړې او علاج یې راته وښود. زه روغتون ته د فیس ورکولو په موخه لاړم. خزانه دار ته د پیسو ورکولو په وخت کې له ستونزې سره مخامخ شوم ځکه، چې هلته یوې نجلۍ د پیسو ورکولو څخه انکار کړی و. له ما

سره هم نغدې پیسې نه وې. زه ډاکټر نیچیار ته بیا ورغلم او هغوی مې د خپلې ستونزې په اړه خبر کړل. هغه له لږ فکر څخه وروسته د ننوتو اجازه راکړه. زما علاج وشو او له څو ورځو وروسته یې زه رخصت کړم. څه وخت وروسته مې د ډاکټر نیچیار یو لیک تر لاسه کړ. په دې خط کې هغه زما د نه پېژندلو له امله بښنه غوښتې وه. ډاکټر نیچیار هغه وخت زما په اړه پوهېدلی و، چې زه له روغتون څخه رخصت شوی وم او له هغه وروسته چا زما په اړه هغه ته معلومات ورکړي وو.

له دې وروسته څو ځله روغتون ته لاړم. د ډاکټر نیچار ورور ډاکټر جې وینکټ سوامي مې ښه ملګری شو. زه به چې کله هم مدوراییي ته تلم، نو له هغه سره به مې لیدل. زه تاسې ته د ډاکټر سوامي په اړه نور معلومات هم درکوم. په ۲۰۰۱م کال کې د اروند د سترګو په روغتون کې د ۱۳۰۰۰۰۰ (یو میلیون او درې لکه) ناروغانو درملنه وشوه. په دې روغتون کې ۱۹۰۰۰۰(یو لکو نوي زره) عملیات تر سره شول او د سترګو د معاینه کولو ۱۵۰۰ مرکزونه جوړ شول. د ډاکټر وینکټ سوامي د کوښښونو له امله دغه روغتون د WHO له خوا ومنل شو. دې روغتون ته به له بهرنیو هیوادونو څخه هم زده کونکي د عملي کار لپاره راتلل.

کله چې ډاکټر وینکټ سوامي په طبي ښوونځي کې زده کړې کولې، نو د بندونو د ناروغۍ له امله یې ګوتو کار پرېښود او بې حرکته شوې. له دې ناروغۍ سربېره یې هم همت له لاسه ورنه کړ او یو لوی متخصص شو.

یوه ورځ مونږ دواړو خبرې کولې. ددې خبرو په لړ کې یې دا پېښه راته بیان کړه: له ډهلي څخه یو صنعتکار د ډاکټر وینکت سوامي لیدو ته راغلی و او ویل یې: زه غواړم چې یو روغتون جوړ کړم. زه ستا له روغتون څخه ډېر اغېزمن یم. ایا ته به ما ته په ډهلي کې روغتون جوړ نه کړې؟

ډاکټر سوامي له هغه څخه وپوښتل: زه د دې خبرې په مطلب پوه نه شوم. ته پیسې لرې. ستا لپاره په ډهلي کې روغتون جوړول خو وړه خبره ده. ته یې په

**خپله ولې نه جوړوې؟**

**صنعتکار ځواب ورکړ: زه د اروند په ښهر یو روغتون جوړول غواړم. د دې ځای اوسېدونکي ډېر ښه خلک دي. هغوی له پیسو څخه د انسان ډېر درناوی کوي. هغه د دې ځای له خلکو سره ځانګړې خواخوږي لرله.**

**زما د روغتون تجربه په دې ډول وه. مونږ ته په کار ده، چې د شخصي ګټې تر څنګ د خلکو خیر او ښېګڼه هم په نظر کې ونیسو.**

**له طب سربېره په نورو برخو، لکه زراعت کې هم له ټکنالوژۍ څخه ګټه اخیستلی شو. زمونږ موخه باید دا وي، چې له خلکو سره مرسته وکړو او اړتیاوې یې پوره کړو.**

**هندوستان هغه وخت پرمختګ کولی شي، چې د دولت عایدات یې لوړ شي او په سم ډول وکارول شي. خلک د زیار او هڅو له امله پرمختګ کوي او خپلو موخو ته رسېږي. مشهوره شاعره اندل په خپل یوه نظم کې له خدای ج څخه د دولت غوښتنه کوي. دا یوازې د هڅو او زیار له لارې تر لاسه کېدای شي. په اکثرو وزارتونو کې فردي پالیسي جوړېږي، خو که د فردي پالیسۍ پر ځای ټولنیزه پالیسي رامنځ ته شي، نو دا به ګټوره تمامه شي. ټولو وزارتونو ته باید یو ډول اسانتیاوې برابرې شي. په دې سره د ټولو ادارو تر منځ انډول رامنځ ته کېږي او همغږي پیدا کېږي. د دې تر څنګ چې د دولت عاید زیات شي، باید د عاید ساتنه هم وشي. دا خبره د پرمختللو هیوادونو ښه ده او د پرمختللي هندوستان کیلي ده.**

**د پرمختللو هیوادونو یوه بله ښه صنعت دی. صنعت باید په هیواد کې وده وکړي اوله دې ورسته نورو هیوادونو ته هم ولېږدول شي. که دا دواړه موخې تر لاسه شي، نو په «جي ډي پي» کې هم ډېروالی راځي. هندوستان هغه وخت له نورو هیوادونو سره سیالي کولی شي، چې د صنعت ډېرې فابریکې ولري.**

د حقیقي پرمختګ لپاره د هیواد ټولو خلکو ته د ښوونې او روزنې اسانتیاوې برابرول یو بل مهم شرط دی. د علم له لارې داسې شخصیتونه رامنځ ته کېږي، چې د هرې شعبې د پرمختګ سبب کېږي. داسې خلک د هر هیواد شتمني ګڼل کېږي.

په اوس وخت کې د ټولو خلکو لپاره یو ډول ښوونیزې اسانتیاوې نه برابرېږي، ډېر خلک غواړي، چې لوړې زده کړې وکړي، خو د هغو لپاره د زده کړې شرایط نه برابرېږي. له دې امله په ټولنه کې د خلکو تر منځ انډول نه ساتل کېږي. لوړې زده کړې له صنعت او ټولنې سره نږدې اړیکې لري، خو په اوس وخت کې دې خبرې ته پام نه کېږي.

د دې ستونزې د حل لپاره یوه لاره دا ده، چې د صنعت او ټولنې اړوندې ادارې جوړې شي. دا ادارې ټولنې ته ښه معلومات وړاندې کولی شي. وروستۍ خبره دا ده، چې ستونزه باید له بېل څخه له منځه یوړل شي. له هر څه نه مخکې باید خپلې موخې په نظر کې ونیول شي او نور هر څه د دې موخو تابع وګرځول شي.

د پرمختګ لپاره باید د صنعت تېرو او راتلونکو اړیکو ته ارزښت ورکړل شي. د راتلونکو اړیکو مطلب دا دی، چې د مشاورتي خدمتونو کار کوونکي باید له مصرفوونکو سره اړیکې ولري. د تېرو اړیکو مطلب دا دی، چې د پوهنتونونو، لابراتوارونو او ټکنالوژیکي ادارو په کارونو کې ګډون وشي. د تېرو اړیکو د ښه والي لپاره په لوړو زده کړو کې پانګونه ډېر ارزښت لري. له دې لارې به د هندوستان صنعت په ټوله نړۍ کې ښه ځای خپل کړي. مونږ باید له شلو څخه ډېرې د «آیي ټي او» طبي ادارې جوړې کړو. دا مهمه نه ده، چې دا ادارې بهرني هیوادونه جوړوي او که په خپله یې هندوستان جوړوي، د دې اساسي موخه د هغوی له خوا د ښو خدمتونو رامخته کول دي. د ۲۰۰۰م کال د اکتوبر د میاشتې په پنځلسمه د پون ګروپ ملګرو زما لپاره د ویب سایټ پرانیست غونډه جوړه کړې وه. دا غونډه د

نارين مرتهي لخوا پرانيستل شوه. غونډې ته پروفيسر اين بالا کرشنن هم راغلی و. زما ځينو ملګرو له ما څخه وغوښتل، چې د ويبسايټ په اړه پوښتنې وکړم. ما درې پوښتنې وکړې. لومړۍ پوښتنه: هندوستان له تېرو پنځوسو کلونو راهيسې پرمختللی هيواد ګڼل کېږي. تاسې ځوانان او پېغلې د هندوستان د پرمختګ لپاره څه فکر کوئ؟ دويمه پوښتنه: زه به کله د هندوستان ترانه لولم؟ درېيمه پوښتنه: مونږ په ډېرو برخو کې ورتياوې لرو او هر څه په خپله جوړولی شو، د نورو هيوادونه شيان ولې خوښوو؟ زما يوازينی شرط دا و، چې د دې پوښتنو ځواب به له شل کلونو څه کم عمره ځوانان راکوي.

د هيواد له دننه او بهر څخه مې په سلګونو ځوابونه تر لاسه کړل. پنځه ځوابونه زموږ له دې موضوع سره برابر وو.

له چندي ګړ څخه يو ځوان ځواب راکړی و: زه نه غواړم چې انجنير يا پروفيسر شم، غواړم چې ښوونکی شم. ځکه چې زه خلکو ته ښه زده کړه ورکولی شم او په دې سره خوښي تر لاسه کوم. زه په دې باور لرم، چې د خدمت کولو تر ټولو ښه وسيله دا ده، چې هغه يا ښوونکی شي او يا پوځي.

له پانډيچري څخه يوې نجلۍ ليکلي وو: امېل له يو ګل څخه نه جوړېږي. زه به دې کار کوم، چې ذهنونه سره يو ځای کړم او امېل ترې جوړ کړم. د دې لامل دا دی، چې د پرمختللي هندوستان لپاره د خلکو يوځايوالی يوه اساسي غوښتنه ده.

له ګوا څخه يو شل کلن ځوان ځواب راکړی و: څرنګه چې يو الکترون په خپل مدار باندې تاوېږي او دمه نه کوي، همداسې به زه هم د هندوستان د پرمختګ لپاره هلې ځلې کوم.

له اټلانټا څخه يو ځوان د دوهمې پوښتنې په ځواب کې ويلي وو: کله چې د اړتيا په وخت کې هندوستان په کوم هيواد باندې بنديز ولګوي، نو زه به هغه وخت د هندوستان سندره وايم. د دې ځوان د خبرو مطلب دا دی، چې ټولنيز کلکوالی نه

شيدو په توليد کې تر ټولو مخکې يو. په صنعت کې مو هم ډېر پرمختګ کړی دی. له دې ټولو سره سره بيا هم هندوستان يو پرمختګ منونکی هيواد دی. همدا ډول په دې پوهېدل هم اړين دي، چې د وړتياو په اساس هندوستان په نړۍ کې کوم مقام لري؟

د ځينو هيوادونو درجه بندي په لاندې توګه تر سره شوې ده. د ټولنيز پرمختګ له نظره سينګاپور لومړی مقام لري. امريکا دوهم، هانګ کانګ دريېم، تايوان څلورم، کاناډا پنځم، انګلستان اتم، فرانسه درويشتم، جرمني پنځه ويشتم او هندوستان نهه پنځوسم مقام لري.

د نړيوالو وړتياو ټاکل څه شی دی؟ د ټکنالوژۍ څخه مناسبه ګټه اخيستل، د صنعت پرمختګ او په دې برخو کې د حکومت مرستې ته وايي. د مجموعي «جي ډي پي» لمخې هندوستان په نړۍ کې دولسم مقام لري. د فی کس «جي ډي پي» په تناسب مونږ په اووه ويشتمه درجه کې راځو. ايا زمونږ لپاره دا مقام د منلو وړ دی؟ مونږ بايد هڅه وکړو، چې په «جي ډي پي» او وړتياو کې څلورم يا پنځم مقام تر لاسه کړو. مونږ بايد تر۲۰۲۰م کال پورې دې موخې ته ورسېږو. په راتلونکو کلونو کې له دې نه هم ښه درجه تر لاسه کړو.

يو ځل بيا وايو چې د دې موخې د تر لاسه کولو لپاره مونږ علمي ټولنې ته اړتيا لرو. زه خوښ يم، چې د پلان جوړونې کمېسيون د داسې ټولنې د رامنځ ته کولو لپاره لايحه جوړه کړې ده.

مونږ بايد له کوم ځای څخه پيل وکړو؟ مونږ اوس هم ډېر نوي رياستونه رامنځته کړي دي او دا د پيل لپاره يو ښه وخت برابروي. دا رياستونه د ډېرو وسايلو په لرلو سره بيا هم دومره پرمختللي نه دي. د خلکو د ډېر زيار او هڅو سره سره بيا هم خلک بېوزله دي. هغه کوم شيان دي، چې مونږ دې ته هڅوي، چې ناسمې طريقې پرېږدو او له نويو او ګټورو طريقو څخه ګټه واخلو؟ پوښتنه دا نه ده، چې څوک به

موږ ته د دې کار اجازه راکړي، پوښتنه دا ده، چې څوک به موږ دې کار ته وربخښي؟ ياني داسې څوک شته، چې زموږ مخه ونيسي؟

## لنډيز

د برياليتوب د تر لاسه کولو لپاره په کار ده، چې خپل پروګرامونه او پلانونه په سم ډول جوړ کړو او د عملي کولو لپاره يې کوښښ وکړو. د پرمختګ لپاره بايد لارې چارې وسنجول شي. انسانانو ټول مادي او طبيعي وسايل په بشپړ ډول نه دي کارولي، ډېر يې لا پاتې دي.

# اتم څپرکی

## د نوي سيمه ييز حکومت رامنځته کول

که د نړۍ پر مخ نور هيوادونه جنت هم وګرځي، نو زما به خوښ نه شي، زما لپاره تر ټولو ښکلی او ګران هيواد هندوستان دی.

ايف ميکس ميلر

- د هندوستان له دومره طبيعي شتمنيو سره سره بيا هم ددې هيواد خلک بې وزله دي.
- زه باور لرم، چې که هندوستانيان خپل هيواد تـه ژمـن واوسـي، نـو لـه سياست سربېره به په ټولو برخو کې پرمختګ رامنځ ته شي..
- که حکومتي محکمې، صنعتي فابريکې او څېړنيـزې اداري پـه ګـډه کـار وکړي، نو په لږ لګښت سره به ډېر پرمختګ وکړي.
- هر وخت چې مونږ يو نوی کار پيلوو، نو خامخا به پکې مـونږ تـه يـو څـه خطره هم ښکاري.

ما دا کتاب د ۲۰۰۱م کال د سپټمبر په مياشت کې په جهارکنډ کې پيل کـړی دی. زما دا خلورم ځل و، چې جهارکنډ ته لاړم. پـه دوه لومړنيـو دورو کـې مـې د دې رياست په اړه معلومات تر لاسه کړل. بيا يې زه د سـاينس او ټکنـالوژۍ د بنسـټ مشر وټاکلم. هلته د تګ موخه مې دا دوه، چې له والي بابولال مرنډي او د ساينس

او ټکنالوژۍ وزیر سمریش سنګ سره وګورم. له دوی سره مې د لیدلو موخه دا وه، چې له هغوی سره د طبي بوټو او ځنګلونو د ساتنې په اړه خبرې وکړم. کله چې زه په رانچي کې ښکته شوم، نو هلکانو او نجونو راته په غاړه کې ګلان واچول او په دې ډول یې راته هرکلی وکړ. زه د هغوی له دې ډول درناوي څخه ډېر اغېزمن شوم. ما له وزیر پربهات کُمار سره هم ولیدل. هغه راته د خپل محلي حکومت او ځنګلونو په اړه معلومات راکړل.

زه یو وخت له رانچي څخه ۷۵ کیلومتره لرې یوې غرنۍ سیمې ته تللی وم. پروفیسر باسو د ماشومانو د تعلیم او روغتیا لپاره یو پروګرام پیل کړی و. کله چې زه د کلي په یوه چوپان کې له مشرانو او ځوانانو سره په ځمکه کېناستم، نو زه په یوه حقیقت باندې پوه شوم. هغه دا و، چې زما هلته تګ په تقدیر کې لیکل شوی و. هلته د پرمختګ هر ډول وسایل موجود وو. په دې سیمه کې پر خپل وخت بارانونه کېدل. ځمکه یې حاصلخېزه وه. لوېې لوېې ونې یې لرلې. ټوله سیمه شنه او زرغونه وه. خلک یې هم ډېر زیاکښ وو. مونږ په سیمه کې له طبي بوټو څخه د درمل جوړولو یو پروګرام پیل کړ. ما ښلاښلو کاروکوونکو ته له طبي بوټو څخه د درمل جوړولو په اړه معلومات ورکړل. زمونږ موخه دا وه، چې درمل باید په خپله سیمه کې جوړ شي، یانې له بهره را وارد نه شي. له دې لارې به د همدې سیمې عواید هم زیات شي او صنعت به هم پرمختګ وکړي. دا زمونږ لپاره یوه نوې تجربه وه. مونږ غوښتل چې په جهارکنډ کې د ګل ټولونې او د طبي بوټو د تولید ځانګې جوړې کړو. له دې وروسته نږدې ښار بوکارو ته روان شوو. اسمان وریځ و. مونږ فکر کاوه، چې پرواز به ونه شي. د ماسپښین له دوه نیمو بجو وروسته د رانچي هوایي ډګر ته ورسېدو. سیمه ییز حکومت یوه پون هنس الوتکه په کرایه نیولې وه. ما له پیلوټ څخه وپوښتل، چې ایا مونږ په دې موسم کې پرواز کولی شو. پیلوټ راته د یوه ښه پرواز ژمنه راکړه. له دې ورسته یې الوتکه په هوا کړه. په دې وخت کې

موسم ډېر خراب و، خو پیلوټ ډېر هوښیار و. یوه شېبه له یو څه ستونزو سره هم مخامخ شو، خو پیلوټ تکړه و او له دې ستونزې څخه یې ځان وژغوره. هغه یوه ډېره جالبه تجربه وه، ځکه چې مونږ د پراخو ځنګلونو، غرونو او دښتو له پاسه پرواز کاوه. ډېر ښکلي چاپېریال یې درلود. ما فکر کاوه، چې دا سرچینې باید له منځه لاړې نه شي او د ساتنې او بیارغونې لپاره یې کار وشي. هیڅوک باید اجازه ونه لري، چې دې سرچینو ته زیان ورسوي. په همدې فکر کې وم، چې زمونږ په الوتکه کې ستونزه رامنځ ته شوه او د پیلوټ له ولکې ووته. الوتکه په لوېدو شوه. ناڅاپه مې واورېدل، چې دواړه پیلوټان د «ار پي ایم» د سیستم په اړه بحث کوي. ما چې لاندې وکتل نو ډېر موټرونه او خلک مې ولیدل، ځکه چې زموږ الوتکه یو څه ځمکې ته رانږدې شوې وه. کله چې دا پېښه واقع شوه، نو الوتکې چاودنه وکړه او پر ځمکه رانسکوره شوه. د الوتکې ټوټې سره بېلې شوې او د الوتکې ماشین(انجن) اور واخیست. زه له الوتکې څخه راووتم. له نبکه مرغه انجن هغه وخت له منځه لاړ، کله چې مونږ ځمکې ته نږدې شوو. که انجن څو شېبې وړاندې خراب شوی وای، نو مونږ ټول ورسره له منځه تلو. پیلوټ د دې پېښې په اړه سخت خواشینی و او مونږ ته یې په خواشیني نظر کتل. ما د هغه لاسونه ښکل کړل او ډاډ مې ورکړ. له هغه څخه مې مننه وکړه او ورته ومې ویل: ته فکر مه کوه، ځینې وخت داسې پېښې رامنځ ته کېږي. پیلوټ باید په داسې حالاتو کې له زړورتیا څخه کار واخلي.

ما غوښتل چې په رام کرشن ودیاله کې زده کوونکو ته وینا وکړم. هغوی ټولو زما انتظار کاوه. مونږ د الوتکې د رانسکورېدو په فکر کې نه شوو او نبغ ښوونځي ته لاړو. د ښوونځي سرښوونکي کرشن سوامي زما هر کلی وکړ.کله چې زه له ایډیټوریم څخه تېرېدم، نو زده کوونکو پر ما باندې ګلان وشیندل. زما له تګ نه وړاندې هغوی د الوتکې له پېښې څخه خبر شوي وو. په غونډه کې ټول زده

کوونکي غلي ناست وو. د اندېښني د کمولو لپاره مې هغوی ته وويل: کله چې زه له رانچي څخه تر دې ځايه راتلم، نو ډېرې ښايسته سيمې مې وليدې. دا سيمه ډېرې طبيعي زېرمې لري. د جهارکنډ ځمکې حاصلخېزې دي او ډېر حاصلات ورکـوي. کله چې زه د ځنګلونو، غرونو او درو له پاسه تېرېدم، نو له هغو څخه د سمې ګټـې اخيستنې په اړه مې فکر کاوه. دې نتيجې ته ورسېدم، چـې دا زمـونږ لپـاره يـوه خدايي ډالۍ ده. په ځمکه باندې مې د اوسپنې فابريکې وليدې. اوس هغه زيارکښ خلک زما مخې ته ناست دي، چې د هغو له امله دا سيمه ډېره مشهوره ده. دا هغـه ځمکه ده، چې په راتلونکې کې به ډېر پرمختګ وکړي. زه وينم، چې پـه رالـونکي کې به کليو ته د ښارونو په څېر اسانتياوې رامنځ تـه شـي. د پـوهنې، روغتيـا او کارموندنې په برخو کې به پرمختګ وکړي. نننۍ پېښه به زما پـه بريـاليتوب کـې ډېره مرسته وکړي. ما چې په دې سيمه کې دومره پرمختګ وليد، نو له ما څخه يې د الوتکې د رانسکورېدو پېښه هېره کړه. اوس ځنګه کولی شو، چـې لـه اساسـي وړتياو څخه ګټه واخلو او يو پرمختللی نظام رامنځ ته کړو؟ د دې پوښتنې ځواب دا دی، چې تاسې بايد کلک هوډ ولرئ او زيار وباسئ.

اوس به هغه زده کوونکي ځوانان شوي وي او يو عملي ژوند به يې غوره کـړی وي. هغوی د يوې علمي ټولنې په رامنځ ته کولو کې برخه اخيسـتلی شـي. د رياسـت لپاره هم هغوی ګټور تمامېدلی شي. هغوی بايد د دې موخې لپاره کار وکړي، چـې له جهارکنډ څخه يوه پرمختللې سيمه جوړه کړي.

کله چې ما د زده کوونکو له خوا چمتو شوي شـيان وليـدل( پـه ځـانګړي ډول د طاوس ګډا)، نو زه د دوی وړتيا هک پک کړم. زما ذهن ته دا خبره راتله، چـې پـه ښوونيزه برخه کې د پرمختګ رامنځ ته کول ډېر اړين دي. ما له ځان سره وويـل، چې زه بايد په مرکز او لرې پرتو سيمو کې له دا ډول خلکو سره خامخا کار وکړم.

د رام کشن ښوونځي سفر مې پای ته ورساو. د ښار په يوه خونه کې غونډه تر سره

کېده. زه هم دې غونډې ته لاړم. ما د خپلې روغتیا لپاره د بوکارو ستیل میل لخوا د را لېږل شویو ډاکترانو مشورې واخیستې. له دې وروسته مې په کنفرانس خونه کې د جهارکنډ د اساسي سرچینو او صنعت په اړه وینا وکړه. ما خپله وینا رالنډه کړه او له ګډونوالو سره مې بحث پیل کړ.

زه چې هلته لاړم، نو ډېرې رسنۍ هم راغلې وې. له همدې امله د پېښې خبر په چټکۍ سره په ټول هیواد کې خپور شوی و. ما ته ډېرو خلکو زنګونه وهل او زما پوښتنه یې کوله. ما نه غوښتل، چې غونډه خرابه شي، نو له همدې امله مې خپل موبایل ډاکټر وجې رګهون ته ورکړ. ډاکټر رګهون د ځمکې له لارې له رانچي څخه دلته راغلی و. ما هغه ته وویل، چې زما ورور ته ټیلیفون وکړي او زما د روغتیا په اړه ډاډ ورکړي. بیا مې ورته وویل، چې زما سکرتر شیریډن ته زنګ ووهي، چې زما د بل موبایل زنګونو ته ځواب ورکړي.

کله چې ما وینا کوله، نو ډاکټر رګهون ما ته یو کاغذ راولېږه. په کاغذ کې یې لیکلي وو، چې ستا ورور دا نه مني، چې ته روغ یې. هغه غواړي، چې له تا سره خبرې وکړي. ما وینا پای ته ورسوله او مشر ورور ته مې ټیلیفون وکړ.

کله چې غونډې ته بیا لاړم، نو له ما څخه ډېره مهمه پوښتنه وشوه: له ډیزاین شویو بندرونو څخه خام مالونه ولې تر لاسه کېږي؟ د جهارکنډ د معدنونو په اړه دا یوه ښه پوښتنه وه. ما په ځواب کې د ګوا د غونډې په اړه معلومات ورکړل. زه د یو پوهنتون فراغتغونډې ته تللی وم. له بندر څخه په کښتۍ کې تېر بدم. له ما سره ډاکټر جوزپال هم و. مونږ جاپان ته د خامې اوسپنې د صادرولو په اړه خبرې کولې. هغه ما ته وویل، چې له څلورو بندورونو څخه په کال کې درې کروړه ټنه خامه اوسپنه صادرېږي. یو کروړ او اویا ټنه له مورموګاو څخه د باندې لېږدول کېږي. دا خامه اوسپنه په ډېره کمه بیه خرڅېږي. اخیستونکي وایي، چې د دې اوسپنې کیفیت ښه نه دی. له همدې امله یې د هغو له خرڅلاو څخه هیواد ته ډېره ګټه نه

رسېږي. که دا خامه اوسپنه په خپل هیواد کې وکارول شي، نو ډېره ګټه به تر لاسه شي.

په بوکارو کې له ما څخه دا پوښتنه وشوه، چې ارزښت لوړول څه شی دی او تاسې د دې مثال ورکولی شئ؟ زما ذهن ته یو ښه مثال راغی. کله چې مونږ په ۱۹۷۰م کال کې د مصنوعي سیارو موټر جوړاوه، نو بریلیم ډایا فرامونو(کیمیاوي مواد) ته مو اړتیا پېښه شوه. دا مواد په راکټونو او میزایلونو کې لوری معلوموي. څرنګه چې مونږ دا مواد نه لرل، نو د نورو هیوادونو څخه مو د اخیستلو لپاره یو ټیم برابر کړ. د دې ټیم مشر «ټي این سیشن» و. له هغه سره مدهون نایر، ډاکټر ایس سي ګپتا او زه په ټیم کې یو ځای وو. مونږ په نیویارک کې له یوې کمپنۍ څخه د ۱۰۰ سوبیریلیم ډایافرامونو د اخیستلو قرارداد لاسلیک کړ.

درې میاشتې وروسته د کمپنۍ له خوا مونږ ته پیغام راغی، چې بیریلیم ډایا فرامونه په میزایلونو کې کارول کېږي، نو له همدې امله د خارجه وزارت څخه هغوی ته د خرڅلاو اجازه نه ورکول کېږي. مونږ ددې ستونزې د هواري لپاره هلې ځلې پیل کړې. په دې هلو ځلو کې دا معلومه شوه، چې هندوستان د خامو بیریلمو ښې زېرمې لري. په هغه وخت کې به خام بیریلیم جاپان ته استول کېدل او هغوی به له پروسیس وروسته ترې انچادرونه او نور مواد جوړول، چې وروسته به یې په امریکایي کمپنیو باندې خرڅول. امریکایي کمپنیو به له هغو څخه ډایافرام او نور مواد جوړول. زه په دې خبره ولړزېدم، چې دا خو هغه کیمیاوي مواد دي، چې د هندوستان له طبیعي زېرمو څخه تر لاسه کېږي او جاپان ته لېږدول کېږي. جاپان یې له پروسیس څخه وروسته په امریکایي کمپنیو باندې خرڅوي او امریکایي کمپنیو یې هندوستان ته له ورکولو څخه انکار کړی دی. زمونږ لومړنی احساس چېرته دی؟ زمونږ په موخو باندې څه تېر شول؟ دا خبره مو په اخبارونو کې په پراخه توګه خپره کړه، نو هماغه و، چې د خامو بیریلمو خرڅلاو بند شو.

په نورو برخو کې هم همدا خبره روانه وه. لنډه دا چې هندوستان له دومره زېرمو سره سره بیا هم یو غریب هیواد دی. ځکه چې هغوی خپلو زېرمو ته پام نه دی کړی. د وحشي حیواناتو او ماهیانو ساتنه یې په سم ډول نه ده کړې. اوس د خامو بیریلمو په پاکولو کې هم لس چنده زیاته ګټه تر لاسه کېږي. له هغو څخه د شیانو جوړولو په برخه کې سل ځله زیاته ګټه تر لاسه کېږي. مونږ دا ګټه جاپان او امریکا ته مفته ورکوله. خامه اوسپنه او ځینې نور مواد هم نورو هیوادونو ته لېږدول کېدل، چې ډېره ګټه یې هماغو هیوادونو ته رسېده. توپیر یې یوازې په لږ او ډېر ارزښت کې دی. له دې پېښو څخه باید مونږ ډېر څه زده کړو.

په دې غونډه کې یوه بله په زړه پورې پوښتنه هم وشوه. هغه پوښتنه داسې وه: ستاسې په نظر ایا په سیاست کې اخلاص شونی دی؟ دا پوښتنه تر یوه حده زما له دایرې څخه بهر وه. د دې پوښتنې یوه برخه ما مخکې هم ذکر کړې ده. زه هغه په دې ډول بیانوم. له ازادۍ څخه وړاندې ټولو خلکو په هره برخه کې کوښښ کاوه. د هغو له ډلې څخه مهاتماګاندي، سي وي رمن، جې آر ډي ټاټا، پیروجشا بي ګودرج، لکشمن راو کیرلوسکر، رام کرشن بجاج، رابندرنات ټیګور، ډاکټر ایس رادها کرشن، مدن مالویه او ځینې نور یادولی شو. د ټولنې په هره برخه کې به یې زیار او هڅه کوله. هغوی ټولو یوه موخه لرله، هغه موخه د هیواد او خلکو پرمختګ و.

زه باور لرم، چې که هیوادوال نن هم د همدې موخې لپاره کار وکړي، نو له سیاست سربېره به په هره برخه کې داسې خلک بیا رامنځ ته شي، چې زمونږ حوصلې به لوړې کړي.

بله ورځ زه د بوکارو سټیل میل ته لاړم. دا د هندوستان د اوسپنې تر ټولو لویه فابریکه ده. د فابریکې مشر ښاغلی تیواړي هم راسره و. هلته په سلګونو خلکو کار کاوه. هغوی دومره کار کاوه، چې د هر یوه بدن خولې و. هغوی به اوسپنه په اور پخوله او له دې امله د اوسپنې پخولو بټۍ ډېره ګرمه وه. ما ته وویل شول، چې

اوس خامه اوسپنه ډېره ده او تر کلونو پورې کار ورکولی شي. ما چې دا فابریکه ولیده، نو ډېر ناهیلی شوم، ځکه چې د هغې شاوخوا هیڅ داسې صنعتي فابریکه نه وه جوړه شوې، چې له دې کارخانې څخه اوسپنه واخلي او اړین وسایل ترې جوړ کړي. ما ته وویل شول، چې صنعتي سیمه د محلي حکومت په واک کې ده. د دې خبرې په اورېدو سره ډېر خپه شوم. داسې ادارې ولې رامنځته کېږي، چې یوه اداره له بلې ادارې څخه جلا وي؟ تر څو چې لرې پرتو سیمو ته د مرکز په څېر ارزښت ور نه کړل شي، نو په هیواد کې به هیڅکله پرمختګ او خوښي رامنځ ته نه شي.

ډهلي ته د ستنېدو په وخت کې په دې فکر کې وم، چې له جهارکنډ سره څه ډول ښه مرسته تر سره کېدای شي. د دې لپاره باید د سیمه ییز حکومت او مرکز تر منځ اړیکې رامنځ ته شي او دواړه باید په ګډه کار وکړي. ایا دا کار به تر سره شي؟

زه یو ځل بیا د «ایس ایل وي۳» میزایلونو او وسلو تجربې رایادوم. له دې تجربو څخه دا څرګندېږي، چې له اړوند فکر څخه زما څه مطلب دی. دې موخې ته د رسېدو لپاره باید ټولې اداري په نظر کې ونیول شي. د راکټ له چمتو کولو څخه نیولې تر توغولو پورې یو لوی پړاو دی. په دې ټولو پړاوونو کې باور ډېر ارزښت لري. لومړی پړاو د روبسټ بوسټر راکټ سیسټم( Robust Booster Rocket System) دی. مخکې له دې چې راکټ و توغول شي، باید بوسټر سیسټم څو څو وارې و ازمایل شي، چې بوسټر سیسټم میزایل هدف ته رسولای شي کنه. ددې موخه دا ده، چې د توغولو پر وخت باید په بوسټر کې هیڅ ستونزه موجوده نه وي. کله چې په ۱۹۸۲ م کال کې د میزایل په پروګرام باندې فکر وشو، نو د «آیې آر بي ایم» غوښتنه هیچا هم ونه کړه. تر څو د «ایس ایل وي۳ بوسټر» له پروګرام څخه اګني (لرې واټن وېشتونکی) میزایل ته لاره هواره شي. په اګني مزایل باندې ۳۶ کروړه روپۍ لګښت راغی او په ۱۹۸۹م کال کې په بریالیتوب سره وتوغول شو.

هیڅا هم دا هیله نه لرله، چې هندوستان به د شپږ کالو په لنډه موده کې «ایـې آر بي ایم» تر لاسه کړي. دا کار ځکه شونی شو، چې څو ادارو په ګډه د اګني میزایـل لګښت په غاړه واخیست او دا ستر اټمي او ساینسي انقلاب یې رامنځته کړ.

ما د بېلابېلو فضايي او دفاعي ادارو لپاره پلانونه جوړ کړي او د همدې تجربـې لـه پلوه ویلی شم، چې که حکومتي محکمې، صنعت او څېړنیزې ادارې پـه ګـډه کـار وکړي، نو په کم لګښت سره به ډېر پرمختګ وکړي. د نورو ادارو لپـاره هـم همـدا اصول په نظر کې نیول کېږي. که مرکز او سیمه ییزې ادارې یو له بل سـره اړیکـې ولري، نو په لږ لګښت سره به ډېر پرمختګ رامنځ ته شي. مـونږ دا فکـر څـه ډول روزلی شو؟ ایا د ناسمو طریقو په پرېښودلو کې څه خطر شته؟

د ۲۰۰۱م کال د اکتوبر په میاشت کې د ډهلي یوه پوهنتون ته لاړم. دا پوهنتـون د ګروګوبند سنګ اندر ست په نوم یادېږي. د وینا لپاره مـې د «ذمـه وارو ځوانـانو» موضوع انتخاب کړې وه. ما د علمي ټولنې په ارزښت باندې خبرې وکړې او ځوانان مې پوهې ته راوبلل. له وینا وروسته راځخه یوه محصل ډېره مهمه پوښتنه وکـړه: کله چې هندوستانیان امریکا او یا بل اروپايي هیـواد تـه لاړ شـي، نـو ولـې ډېـر پرمختګ کوي؟ هغوی چې هلته لاړ شي، نو شتمن کېږي هم.

ما وویل: ما په همدې تېرو څو ورځو کې د چداننډ راج ګهټ کتاب (زین شوی آس) لوستلی دی. دا کتاب یې د ځوانو هندوستانیانو لپاره لیکلی دی. هغـه د «آې ټـي» په برخه کې بریالیتوب تر لاسه کړی دی. په دې بریالیو شخصیتونو کې ما یـو ګـډ صفت ولید، هغه دا و، چې هغو ټولو جلا جلا کار نه دی کړی. هغوی د مذهب او نورو اختلافاتو په اړه فکر نه کوي. له خپلو ملګرو سره ګډ کار کوي. هغوی لـه خطرونـو ځخه وېره نه لري. په پردي هیواد کې کار کول هم په خطره کې شمېرل کېږي.

ما له بي چندر شیکهر سره ولیدل. هغه په سیلیکان دره (Silicon valley) کـې پـه دې بریالی شوی و، چې د ټکنالوژۍ په انسټیټوټ کې د انټرنیټ یو مرکز جوړ کړي.

یوه ورځ چندر شیکهر د لس لکه ډالرو کمپنۍ خرڅه کړې وه. کله چې ما لـه هغـه څخه وپوښتل، چې ولې دې ځان په خطر کې واچو؟ هغـه ځـواب راکـړ، چـې لـه خطرونو سره لوبې کول راته ډېـر خونـد راکـوي. د هغـه او ځینـو نـورو کمپنیـو بریالیتوب ځینې نور لاملونه هم لري. هغوی تلپاتې کارونه تر سره کـوي. څـومره چې د هغوی کارونه ښه وي، نو هغومره به نور شتمن شي.

په دې اړه زه یوه تجربه بیانوم. دا د ۱۹۵۵م کال خبره ده. زه د مدراس د ټکنالوژۍ په انستیټیوټ کې د فضایي انجنیرۍ د دوهم کال زده کړیـال وم. ډاکټـر انسـري نواسن فضایي انجنیر و، زمونږ لارښود و، ما د هغه تر لارښونې لاندې د یوې جنګي هوایي الوتکې د ډیزاین په پروژه باندې کار کـاوه. د دې کـار مسـؤلیت د اوو زده کوونکو په غاړه و. درې کسانو، ویویک آنندن، مها بالیشوربټ او مـا پـه سیسـتم باندې کار کاوه. زمونږ ټیم ته دا دنده ورکړل شوې وه، چې په درې میاشتو کې باید د ډیزاین ټول راپور وړاندې کړو. زما ملګـرو د انجـن، کنټـرول سیسـتم او د دې سیستم د رسامۍ اړوند معلومات له ټاکلي وخت څخه وروسته وړاندې کړل، نو لـه همدې امله ما هم د خپلې رسامۍ په راټولو کې دوه اونـۍ ځنـډ وکـړ. د اګسـت د میاشتې ماښام و، چې د رسامۍ په تخته باندې بوخت وم او خپل کـار مـې چمتـو کاوه. ډاکټر سري نواسن زما کوټې ته راغی او زما په کار باندې یې نظر ورکړ. هغـه پوه شو، چې ما لا کار نه دی بشپړ کړی. هغه وویل: که ته دا کار په درې ورځو کـې بشپړ نه کړې، نو ستا دنده به وځنډول شي.

د دندې ځنډول زما لپاه یوه ډېره بده خبره وه . وظیفه خو زما ژوند و، ځکه چې زما پلار دا وس نه درلود، چې زما مالي لګښت په غاړه واخلي او زه په «ایم ایې ټـي» کـې زده کـړې وکړم. ما باید له وخت څخه سمه ګټه اخیستې وای. د دې کار د ترسره کولـو لپـاره درې ورځې ډېر لږ وخت و. ما باید په پرله پسې توګه کار کړی وای او همداسې پرېکړه مې هـم وکړه. زه درې شپې د پوهنتون په انګړ کې د ناستې لپاره په ایښودل شویو اوږدو څوکیـو

ویده کېدم او یوازې د خوړو لپاره به د باندې وتلم. پوره درې ورځې وروسته ډاکټر سري نواسن زما د رسامۍ تخته ولیده. پوره یو ساعت یې زما کار ولید او ویې ویل: ډېر ښه! تا د اونیو کار په ورځو کې تر سره کړی دی. د هغه له خوا ځخه دا ډېره لویه ستاینه وه. هغه وخت زه پوه شوم، چې که څوک وننګول شي، نو د انسان ذهن متحرک کېږي او د کارکولو وړتیا یې څو چنده زیاتېږي. ننګونې چانسونه راپیدا کوي. کله چې یو څوک د یوه کار ذمه واري واخلي، نو باید په تر سره کولو کې یې کوښښ وکړي. په هر کار کې بری او ناکامي ضرور وي. دا خبره باید ستا په کار کې ستونزې رامنځته نه کړي. که تاسې ناکام شئ، نو تاسې به تجربه تر لاسه کړئ. دا تجربه به مو په راتلونکي وخت کې په کار راشي. یو کار د خپلو وړتیاو په اساس پیل کړئ. داسې فکر وکړئ، چې زه به یا په دې کار کې پرمختګ کوم او یا به له دې کار څخه لاس اخلم. خپل ځانونه د هلو ځلو لپاره چمتو کړئ. د کوښښ او زغم له لارې به تاسې بری تر لاسه کړئ. هر وخت چې مونږ یو کار پیلوو، نو په هغې کې به خامخا یو څه خطر وي. تر دې چې د زېږېدو عمل هم یو خطرناک عمل دی. کله چې ماشوم ساه اخیستل پیلوي، نو د ژوند چینه له ټولو هیلو او امیدونو سره په بهېدو پیل کوي. د بریالیتوب په فکر کې ساه واخلئ، نو تاسې به بریالي شئ.

## لنډیز

که مونږ موخه ولرو، نو پرمختګ هم کولی شو. ځوانانو ته باید سمه لارښوونه وشي، څو د ژوند سم لوری وپېژني او خپلو موخو ته ورسېږي. دې موخې ته د رسېدو لپاره باید په ځینو ځانګړو ښوونیزو اصلاحاتو باندې عمل وشي.

د چټک پرمختګ لپاره باید د مرکز او سیمهییز حکومت اړیکې ټینګې شي. له دې سربېره باید بېلابېلې ادارې او د ټولنې خلک سره همغږي شي. فکر باید بدل کړو. د خطرونو لپاره باید ځان چمتو کړو. په پایله کې به بری خامخا تر لاسه شي.

# نهم څپرکی

## له خپلو هیوادوالو څخه غوښتنه!

چېرته چې زړورتیا او سرلوړي وي
چېرته چې پوهه ازاده وي
چېرته چې نړۍ نه وېشل کېږي
ای زما بابا! زما هیوادوال راویښ کړه
رابندرنات ټاګور

- ما په دې ټول کتاب کې د تخیل د ځواک په اړه خبرې کړي دي. د ګټونکو او بایلونکو تر منځ یوازې په همدې ځواک کې توپیر دی.
- موخې له ادارو څخه لوړې دي او ادارې د هغو له کارکوونکو څخه لوړې دي.
- د خلکو اړتیاوې له هر څه نه مهمې دي.
- په خلکو کې له همغږۍ پرته هیڅ اجنډا ارزښت نه لري.
- خپل ذهنونه بیدار کړئ او لوړ فکر وکړئ!

ما په دې کتاب کې د تخیل د ځواک په اړه خبرې کړي دي. تخیل د تخلیق او نوښت لپاره لاره هواروي او ژوند یې اصلي منځپانګه ده. هر ډول غوښتنې د تخیل له لارې تر لاسه کېږي. په ګټونکو او بایلونکو کې یوازې د تخیل تر منځ توپیر دی.

زه غواړم چې په راتلونکو شلو کلونو کې هندوستان یو ګټونکی او شتمن هیواد شي. داسې هندوستان غواړم، چې هلته ښه مشران حکومت کوي. زه د داسې یو نظام خوب وینم، چې ساینسپوهان او ټیکنالوژي پوهان د عامو خلکو موخې په نظر کې ونیسي. دا خوب څه ډول په حقیقت باندې بدلېدلی شي؟

مونږ باید په دې حقیقت وپوهېږو، چې موخې تل له ادارو څخه لوړې وي. داسې لوړې وي، لکه څنګه چې اداري له کارکوونکو لوړې وي. موخې په هلو ځلو سره تر لاسه کیږي او موخې ذهن ټاکي. په دې فکر وکړئ، چې کومه محکمه یا وزارت انسان مریخ ته خېژولی شي او هلته کلي جوړولای شي؟

ایا له کوښښ او زیار پرته حرارتي، کیمیاوي او نورو انرژیو څخه دوه لکه میګاواټه بریښنا تر لاسه کېدای شي؟

زرغون کرنیز انقلاب بغیر له ساینسپوهانو، ټکنالوژۍ او د اوبو لګونې له انجنیرانو څخه رامنځ ته کېدای شي؟ که زمونږ په کلینکونو کې ښه معاینات تر سره نه شي او له باکیفیته درملو څخه ګټه وانخیستل شي، نو ایا د خلکو ژوند به پایښت ولري؟ د خلکو لپاره باید پرمختللې طبي اسانتیاوې په ارزانه بیه برابرې شي.

ما د خپلو وړتیاو په اړه ځینې تجربې وړاندې بیان کړې. تخلیق داسې ځواک دی، چې ستاسې په داخل کې راپیدا کېږي. دې ځواک د ازادۍ په وختونو کې ډېر خلک په جوش راوستي وو. زه چې له کومو ننګونو سره مخامخ شوی یم، نو دې ځواک راسره ډېره مرسته کړې ده. له ازادۍ څخه وړاندې هم په هندوستان کې دا ځواک ډېر و. مونږ د همدې په مرسته د نړۍ یو لوړ ځواک ناکام کړ.

جمشید جي نصروان جي د انګلستان د حکومت له مخالفت سره سره بیا هم په هندوستان کې د خامې اوسپنې صنعت ته وده ورکړه. اچاریه (پي سي رې) طبي او کیمیاوي صنعت جوړ کړ. د جې این ټاټا له خوا په بنګلور کې د ساینس انسټیټیوټ جوړ شوی و. په بنارس کې د پنډت مدن موهن له خوا هندي پوهنتون

او د سیداحمد خان له خوا د علي ګړ مسلم پوهنتون ډېر مشهور دي. ځینو نورو پوهانو هم پوهنتونونه جوړ کړي دي. په بروده کې داسې ډېر مثالونه شته. په دې ټولو مثالونو کې د هندوستان پرمختګ او سرلوړي نغښتې وه او د دې مثالونو له لارې دا څرګندېږي، چې هندوستان داسې کولی شي. ایا مونږ د دې کار د تر سره کولو لپاره کوښښ کوو او دې موخې ته رسېدلی شو؟ ایا په هندوستان کې جوړ شوي موټرونه مو په نورو هیوادونو کې لیدلي دي؟ یا هندوستان د مصنوعي سیارو په اړه نورو هیوادونو ته مغلومات ورکولی شي؟ هندوستان به د جاپان، چین او امریکا لپاره بریښنا چمتو کړي؟ که مونږ موخه ونه لرو او په دې اړه ښه فکر ونه لرو، نو دا کار شونی نه دی.

نن سبا خو مونږ په سافټ ویر کې پرمختګ کړی دی، خو ایا مونږ په دې اړه نور پرمختګ هم کولی شو؟ ایا مونږ اپریټنګ سیستم(د کمپیوټر د پروګرامونو چلولو سیستم) جوړولی شو؟ زمونږ په هیواد کې خام مواد، لکه خامه اوسپنه او ایلومینیم په پرېمانه توګه پیدا کېږي. ایا مونږ له دې خامو موادو څخه داسې شیان نه شو جوړولی، چې نړیوال مارکېټ ولري؟ له مونږ سره په سلګونو دفاعي مواد شته، خو هندوستان جنګي ټانکونه، میزایلونه، الوتکې، ټوپکونه او نورې دفاعي آلې ولې نه جوړوي؟ مونږ د ډېرو کارونو د تر سره کولو وړتیاوې لرو، نو څه دي، چې مونږ یې نه لرو؟

لږ فکر وکړئ، چې له دې ننګونو سره مونږ څنګه مبارزه کولی شو؟ مونږ باید په دې وپوهېږو، چې ادارې له همغږۍ پرته خپل کارونه په سم ډول نه شي تر سره کولی. له خپل هیواد سره باید له زړه نه مینه ولرو. مونږ داسې کړنو ته اړتیا لرو، چې د ټول هیواد لپاره ګټورې وي. د هیواد ځینې ریاستونه له نورو څخه پرمختللي وي. تکړه ځوانو سوداګرو د ټکنالوژۍ په برخه کې ډېر پرمختګ کړی دی. بنګلور، چنای، ممبی، ډهلي او حیدراباد د کار او سوداګرۍ مرکزونه دي. که څه هم په

«آيې ټي» برخه کې ډېر پرمختګ شوی دی، خو کافي نه دی. هغه خلک چې له ښارونو څخه لرې اوسېږي، هغوی ته بايد د ښې زده کړې زمينه مساعده شي، څو هغوی هم له خپلو وړتياو څخه بشپړه ګټه واخلي او پرمختګ وکړي.

په شمال ختيځو ولايتونو تري پوره، آسام او جهارکنډ کې ما هغه سرچينې وليدې، چې ګټه ترې نه اخيستل کېده. له تري پوره څخه به د بانس لرګي او نور ځنګلي حاصلات تر لاسه کېدل. دلته ډېرې طبيعي سرچينې شته او طبيعي ګيس هم پرېمانه دی، مګر د تګ راتګ اسانتياوې په بد حالت کې دي. هلته د سفر او کاروبار اسانتياوې هم برابرې نه دي. هلته يووالی نشته. په جهارکنډ کې هم همدا حال دی. ځنګلي حاصلات او معدني ذخيرې ډېرې دي. په آسام کې د وسايلو هيڅ کمی نشته. په ولايت کې ښوونيزه اداره شته. د پرمختګ ټولې برخې هلته شته دي. تر څو چې هلته کورنی جنګ وي، نو خلک به ناارامه وي. که ټول يوه موخه ولري، نو يووالي ته به يې وهڅوي. د تامل ناډو، اندراپردیش، پنجاب او کرناټک له ولايتونو څخه ما ته دا معلومات ترلاسه شول، چې که د روغتيا او پوهنې په برخو کې ښه والی رامنځ ته شي، نو ډېر څه به تر لاسه شي. دا او ځينې نور ولايتونه د ټولنې د پرمختګ ښه مثالونه دي. زمونږ پوهه، سياسي جوړښت او پوهنيزې ادارې له بحث څخه ډکې دي. دلته نه ختمېدونکي بحثونه، دليلونه او نظرونه ډېر دي، خو بيا هم پرمختګ کم دی. مونږ بايد د يو پرمختللي هندوستان په اړه په کانفرانسونو او پروګرامونو کې بحث وکړو. ټولې ادارې بايد د خپل توان مطابق کار تر سره کړي. د دې معنا دا ده، چې مونږ د ټولو وړتياو په کارولو باندې خوښ يو. له دې لارې به زيار او کوښښ بې ګټې نه وي.

ما په دې کتاب کې په دې خبره ټينګار کړی دی، چې مونږ بايد خپل لوړ ذات(ځان يا Self ) وپېژنو او ځان د يوې پرمختللې ټولنې شخص وګڼو. مونږ ډېر لوړ تهذيب لرو او د دې ځای ټول خلک بايد په دې تهذيب باندې باور ولري. زمونږ کتابونه دا

وايي، چې د نړۍ او زمونږ تر منځ هيڅ واټن نشته. مونږ بايد د ټولې نړۍ سره همغږي شو.

ځينې خبرې زه دلته بيانوم. د يوه هيواد د خلکو اړتياوې له هر بل کار څخه مهمې دي. د پارلمان دنده دا ده، چې د خلکو د ښه ژوند او پايښت لپاره هلې ځلې وکړي. مونږ ته ازادي په سوغات کې نه ده راکړل شوې. د ټول هيواد وګړو کلونه کلونه د هيواد ازادۍ لپاره زيار ايستلی و، نو په کار ده، چې مونږ يې ساتنه وکړو. د ژوند په هره برخه کې مونږ تکړه مشران لرل. مونږ بايد خپل هيواد د نورو هيوادونو له يرغل څخه وژغورو او د راکړل شوې ازادۍ درناوی وکړو. له هر څه نه وړاندې بايد د هيواد ابادۍ او د خلکو خوښۍ ته ارزښت ورکړل شي. په خلکو کې له همغږۍ پرته هيڅ اجنډا ارزښت نه لري. د هندوستان د پرمختګ لپاره زده کوونکي بايد هوښيار واوسي او په دې اړه لوړ فکر ولري.

حقوق پوهان وخت لري، چې له سياسي مشرانو او عامو خلکو سره وويني. هغوی بايد داسې پريکړې وکړي، چې د ټولو خلکو په ګټه وي. د ولسوالۍ خلک بايد د مرکز له خلکو سره اړيکې ولري او دواړو ته بايد په پراختيايي کارونو کې يو ډول برخه ورکړل شي. له ازادۍ نه پنځوس کاله وروسته هم خلکو ته د ساينس په اړه سم ډول فکر نه دی ورکړل شوی. اوس وخت رارسېدلی، چې کليوالي سيمې هم د ساينس او ټکنالوژۍ په برخه کې پرمختګ وکړي. د کليوالو سيمو لپاره بايد کار وشي. نړيواله مسابقه پيل شوې ده. کېدای شي دا مسابقه له «ډبليو ټي او» سره وي او يا له چين سره وي. د صنعت کارانو لپاره که خام مواد په ارزانه بيه برابر شي، نو صنعتي حاصلات به زيات شي.

وړتيا او نوښت د صنعتي حاصلاتو دوه ستنې دي. که صنعتي فابريکې په ګډه کار وکړي، نو د ټولې نړۍ د پرمختګ سبب کېږي. هندوستان د «آيې ټي» په برخه کې ډېر اختراعات تر سره کړي دي او په نړۍ کې لوړ مقام لري. نن سبا هندوستان په

«آيپ تي» برخه کې يو پرمختللی هيواد دی. له «آيپ تي» څخه بايد په روغتياساتنې، د بې سوادۍ په لمنځه وړلو، د هنر پيداکولو او الکترونيکي پوهې په تر لاسه کولو کې گټه واخيستل شي. همدارنگه له «آيپ تي» څخه بايد د قام د يووالي په برخه کې هم گټه واخيستل شي.

وروستۍ خبره دا ده، چې بزگران ډېره خواري کوي او ټولو خلکو ته خواړه برابروي. اوس وخت رارسېدلی، چې په زراعت کې بايد دوه کارونه تر سره شي. لومړی بايد د زراعتي محصولاتو ارزښت لوړ شي. دويم بايد د کرنيزو محصولاتو کيفيت لوړ شي او په نړيوال مارکېټ کې ورته بازار موندنه وشي. بازار موندنه په کرنه کې ډېر ارزښت لري. دا کار د بزگرانو لپاره ډېره گټه لري.

ای خدايه! ته زمونږ خلکو ته دا ځواک ورکړې، چې شر او ناامني له منځه يوسي. زمونږ هيواد او خلکو ته خوښي ورپه برخه کړې. زمونږ په خلکو کې يووالی رامنځته کړې. د يو پرمختللي هندوستان لپاره له ما سره دا مرسته وکړې، چې د خلکو د سوکالۍ لپاره کار وکړم او خوشاله يې وساتم.

وروستۍ خبره

د دې کتاب له لارې زه خپلو خلکو ته دا خبره کوم، چې له ازادۍ وروسته تر نن پورې زمونږ کارونه د ډاډ وړ نه دي او په تېرو پنځوسو کلونو کې مو ډېر کار نه دی کړی. بايد تر دې هم زيات کار وشي. مشران بايد د ځوانانو د ښه ژوند په اړه فکر وکړي. ځوانان بايد په ستونزو کې يوازې پرېنږدي. د ځوانانو د پرمختگ لپاره بايد کار وکړي. زه په دې فکر کوم، چې خپل کتاب څه ډول رالنډ کړم. ما په انټرنيټ کې د روح او تکبر کيسه لوستې وه او هغه داسې بيانوم:

روح تکبر ته وايي: زه پوهېږم، چې ته دا نه منې چې له پيدايښت نه وروسته ژوند وي.

تکبر روح ته وايي: له ځان نه کم عقل مه جوړه! خپلې شاوخوا ته وگوره. هر څه

همدلته دي. له دې حقيقت نه ورهاخوا د هر څه په اړه فکر ولې نه کوې؟ هر څه چې په تقدير کې ليکل شوي وي، هماغه تر سره کېږي.

روح د يو څو شېبو لپاره غلی و، خو وروسته يې وويل: تکبره! له غوصې نه کار مه اخله. زه په دې هم باور لرم، چې دلته يوه مور هم شته.

تکبر وخندل او روح ته يې وويل: ته څنګه داسې وايې! تا خو هيڅکله هم مور نه ده ليدلې. ته هغه شيان ولې نه منې، چې ستا په شاوخوا کې موجود دي؟ ته له ما سره يوازې يې! دا ستا حقيقت دی.

روح له تکبر څخه غوښتنه کوي، چې د هغه خبره په غور واوري. ته د دې فشار په اړه څه فکر کوې، چې په مونږ دواړو کې احساسېږي؟ زه په دې باور لرم، چې مونږ به ډېر ژر يو نوی ژوند پيلوو او رڼا به وينو.

تکبر ځواب ورکوي. تا هيڅکله هم رڼا نه ده ليدلې. ته څه پوهېږې، چې هغه څه ډول ده؟ ژوند خو يوازې د تيارو او تنګسيو لپاره وي.

روح نه غواړي، چې يو ځل بيا تکبر خپه کړي، خو بيا هم يو څه وايي. هغه وايي: زه باورو لرم، چې له دې ټولو تيارو وروسته به خامخا يوه روڼ رڼا راځي او له مور سره به هم ليده کاته کوو. تکبر بل ځواب نه لري او وايي، چې روح لېونی دی.

د دې کتاب له لارې زه خپلو خلکو ته دا ويل غواړم، چې زمونږ هيوادوالو له آزادۍ وروسته په تېرو پنځوسو کلونو کې داسې کارونه نه دي تر سره کړي، چې مونږ ورباندې وياړ شو.

کله چې ما په چنای کې ۱۵۰۰ زده کوونکو ته وينا کوله، نو زده کوونکو د قوم د پرمختګ، سياسي مشرۍ، ساينس او ټکنالوژۍ، پوهنې او نورو موضوعاتو په اړه پرله پسې پوښتنې درلودې. له وينا وروسته ټولو زده کوونکو هڅه کوله، چې له ما سره له نږدې وګوري. د رخصتۍ په وخت کې يو ځوان ستوري پېژندونکي سرونم دا هڅه کوله، چې له ما سره وګوري. کله چې ما ته راورسېد، نو يو کاغذ يې راکړ. ما

هغه په جېب کې واچاو او بیا مې په موټر کې ولوست. په دې کاغذ کې د حیواناتو د علم په اړه لیکلي وو. زه په دې کار ډېر خوښ شوم. زه غواړم، چې دا خبرې تاسې ته هم درورسوم. په دې کاغذ کې لیکل شوي وو: د برګد (پیپل) د ونې ټول څواک په تخم کې وي. په یوه لحاظ زه او ته دواړه یو ډول یو. مونږ پـه بېلابېلـو ډولونـو د خپلو وړتیاو څرګندونه کوو. ځینې تخمونه راشنه کېږي او بیا لـویېږي او د برګـد ونې ترې جوړېږي. ځینې تخمونه یې نه شنه کېږي او له خاورې سره خاورې کېږي. کله چې له خاورې سره یو ځای شي، نو د سرې (کوډ) په توګه ترې ګټه اخیسـتل کېږي.

تا د هیواد لپاره خدمت کړی دی او د ډېرو ساینسپوهانو، انجنیرانو او زده کوونکـو سره دې مرسته کړې ده. ته څه پوهېدې، چې هغوی به له خپلو وړتیاو څخه سـمه ګټه اخلي او د ځینو تخمونو په څېر به د هغوی پرمختګ په نیمـه کـې نـه پـاتې کېږي؟ په دې اړه ته څومره بریالی یې؟ ما په هماغې ورځ د هغې پوښـتنې ځـواب داسې ورکړی و: زه ستا له دې پوښتنې سره څو ځلې مخامخ شوی یم. ما د راکـټ، میزایل او د مصنوعي سیارو د موټر په جوړولو کې شل کاله پـه ISRO کـې او شـل کاله په DRD کې تېر کړي دي. ما ډېر بریالیتوبونه تر لاسـه کـړي دي او لـه ډېـرو ناکامیو سره مخامخ شوی یم. ما په لږ وخت کې له ډېرو ساینسپوهانو، انجنیرانو او ټکنالوژۍ پوهانو سره کار کړی دی. د ګډ کار له امله په ډېرو کارونو کې بریالي شوو او له ناکامیو څخه مو زده کړه وکړه. ما د خپل ټیم ځینې داسې غړي ولیـدل، چـې علم او عمل یې دواړه درلودل او هغوی مې له ځان نه هم لوړ ګڼل.

د سرونم پیغام دا و، چې مونږ ټول باید خپلې دندې وپېژنو. مشران بایـد د ځـوان نسل لپاره د ښه ژوند برابرولو زمینه مساعده کـړي. ځوانـان بایـد پـه ساینسـي پرمختګ کې له ناکامۍ څخه وژغورل شي. زه دا کتاب د یوې پوښتنې پـه ځـواب باندې پای ته رسوم. دا پوښتنه له ما څخه د اختر په ورځ شوې ده. ته اوس ( داختر

په ورځ) له خدای څخه د څه شي دعا کوې؟ ما وويل، چې زه د خپلو ښوونکو، ملګرو او خپلوانو د خوښيو له دعا څخه سربېره لاندې دعا کوم:

ای خدایه! زما د هيوادوالو په ذهن کې فکر او عمل دواړه پيدا کړې او هغوی په اتفاق ولرې.

زما د هيواد ټولو مذهبي مشرانو ته دا توفيق ورکړې، چې هغوی خلک له قومي او مذهبي جګړو څخه وژغوري.

مشرانو او عامو خلکو ته دا فکر ورکړې، چې د افرادو پر ځای د ټولو هيوادوالو خدمت وکړي.

ای خدایه! زما خلکو ته همت ورکړې، چې د هيواد د آبادۍ او د خلکو د خوښۍ لپاره کار وکړي.

